4171

# کندهار




په کندهار کښې د زراعتي تراکتورنو د ورکشاپ یوه منظره
په دغه ورکشاپ کښې زراعتي تراکتورونه ترمیم او
اصلاح کیږي

سال ۱۳۵۰

(۱)

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتی مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین [ایوبی]

مهتمم: پیغله قمره (اڅکزۍ)

کندهار

میاشتنۍ خپرونه

ادبی، تاریخی، اجتماعی، علمی

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹
د دولسم کال لومړۍ ګڼه
پرله پسې ګڼه ۱۲۷

کالنۍ بیه

په کندهار کی [۲۸] افغانۍ

د هیواد په داخل کی [۳۲] د

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

د وری میاشت
۱۳۵۰ لمریز کال

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR:

GHULAM MOHYUDDIN

AYUBI

APRIL 1971

GOVERNMENT PRESS

# د کندهار مجله

د کابل څخه د لیږنه :

به کابل کی د پښتو ضرورت او هغه خوا ته نظر چی ور ته شته ده د کندهار د مجلی او ور څپانی سره بی علاقی ور ته وایاست که غافله کړی وم. بیاهم د قاقو بی

سره محبت دی چه ول گناه ته ملتفت غونیږی کړم او دا گناه د یو ه اعتذار به اعتراف دفع کول غواړم په دی شان چی ور وسته تر دی به

دا ستی قاقو بی د ښېلو ښېلو انو سره د قلم په ژبه د قاقو بی د ښه والی ارمان منعکس کوم . دا ده زما وعده او هغه ژ اعتراف ستاسی ژواک

## اقتراح :

# ادب یعنی ؟

یو هیږم چی د دی یو ښتنی د باره زمو ږ د ځوانانو ذ ا ږه سره ځوا بو نه ستنه خو ږه؟ ز هغه دوی ته پریږدم او وا یم ادب او هنر یو مجرد شی نه بولی ځکه ادیب

قولنه ز یږوی او جوړوی یی هم دا شخړه او س علم حل کړی ده چی ویل کیده به: «نوابغ قولنه جوړوی» بلکه نن دا منل شوی ده چی قولنه د نوابغو به جوړولو کی اهم رول لری د دی اصل په

اساس را ستی چی دا هم و منو چی د ادیب به جوړولو او روزلو کی محیط لوی رول لری . ځنگه ؟

دا رول چی که یوه قولنه د ژاړه فکر غوړه وا لی اهم گڼی ادیب ددی اغیزی څخه نه شی ژغلای ځو که قولنه د یوه ریفورم غوښتونکی وی ادیب به خامخا اصلاحی غوښتنه منعکسه کوی به همدی شان که قولنه د بنیادی تحول

سره تلوسه پیدا کړی په دی وخت کی ادیب دی تلوسی ته را بلل کیږی .

دا دی د ادب تعلق د ادیب سره او دا ده د ادب په برخه کی زما نظر به چی تاسی ته به په ډیر لنډ ډول عرض سی دا غلو دی برخی ته چی ادیب ولی کله خپلی خبری به پرده کی نغاړی او ولی خپله مدعا ځرگنده محیط ته نه سی عرضه کولای ؟

دا سوال هم زموږ د مخه نظریه تا بتوی او دا چه ول چی محیط او قولنه به ده ته دپرده دا ری امر کوی او ځنی غواړی به چی قدم ځرنگه کښیږدی .

دا خبره به ممکن تاسی را سره منی چی ادیب دده دا وعنعنی ـ مذهبی تقدس او سیاسی چا ر او جنجا له به هیڅ شان نه شی بی پروا کیدلای او ددی درو شکیلو مخه هر وخت ادیب ته ځرمه وی حتی دا هم باید و منل شی چی دغه دری شکیله ده ته قولنه ور ځرمه کوی او دی چی په دغه ډول ځنځیر کی د شرنگی آواز یو رنه کوی او خلکک دی ته را بولی چی دده د ځنځیر د شرنگی ا ز انگه تعبیر کړی .

دا تعبیر د چا له خوا کیږی؟ د محیط د ما حول او د قولنی له خوا شوی دی او کیږی هم په دې اعتبار موږ باید بیا هم دا و منو چی ادب د ادیب په هنداره کی د محیط امر او د محیط دژوند ځرو ده .

که دا کلیه و منل شی نو موږ باید دا یو ښتنه و نه کړو چی ادب یعنی ؟

د زیری د جریدی مدیر ژواک :

بلکه باید دا او وا یو چی محیط یعنی ؟ خیر ځنی لا بله هم لری هغه

دا چی ادب پخپله یوه غایه یاد ادب او محیط څخه مجرد بولی او وا یی : هنر د ژوند نقش نه دی او هنر یا ادب چی د هنر یوه برخه ده د محیط د نقش چو ونکی خو ده مگر دا باید و نه ویل شی چی د ژوند په

اصل کی یوه غوټه برخه ، دا چه ول نظر سته ځکه ددې نظر سره دا قوت بیا مه غواړی چی دا ثابته کړای شی چی هنر یا ادبی هنر د مریخ یا زهری یوه غوړه او ښا یښته مرغلره ده چی د نیلی آسمان د خوا بربشر او قولنه را نو ټیږی .

دا یوه ښکاره او لنډه خبره ده

چی د هنر او ادبی هنر قیمت تل کلو ته قولنه او انسان معیار ټاکی او دغه انسان او دغه قولنه ده چی موږ ته د «غوره» او «نتلی» حیثیت را ښئی بیا هم دا وړا نگه د همدغه لمر څخه را پیله ده او

باید ووایو چی ادیب د ادب ځرگندوونکی او ادب د قولنی دا مر یوه شمه ده .

دا چی دا دیب رول په دې برخه کی څه دی په دې برخه کی به موږ بله ورځ لږ او ډیر بر وږغیږو یعنی دا دیب د رول څخه انکار هم د لته ما ته بر یوه حقیقت سترگی پټول ایسی .

دا منلی برخه ده چی ادب د ادیب یا هنر د هنرمند سره دوا ړه دوه اړخه لری چی یو خوا یی دده ذاتی استعداد او بله بیا هغه عطا ده چی قولنه یی ور په برخه کوی یا موږ باید دا دیب دوینا میکک څخه انکار ونه کړو مگر دلته یوه برخه میکانیکه هم ده او دا بیا نون به بل وخت و ځیږو .

(۱مخ)

# نوی کال په خوښۍ او هیله
# مندۍ سره استقبال کړی

دژمی دسړی او عبوسی ځهری په تیریدو سره ژوند
کال سرته ورسیدی او نوی کال په خوښۍ او خندا سره
راغی، دپسرلی خوږ نسیم په خپل راتګ سره د نوی ژوند
ویښتیا، نوی حرکت او فعالیت پیغامونه راوړل .
وچ دښتونه او سپیره غرونه بیرته شنه او ژرغونه
شول، دپسرلی باران مری خوا ته دفیض ټڅ کی او په روانی
کړی، شپانه هر سهار خپلی رمی سمسورو دښتونو ته بیائی
او دشنو غرو په لمنه کښی ئی بیائی، کروندګر او باغوانان
سهار وختی په خپلو بڼو، کروندو او باغونو کی لګیاوی
زیار باسی او فعالیت کوی څو چه د خپلو باغونو او
ځمکو څخه دځان او قولنی په ګټه کار واخلی او د کرنی
دلاری هیواد بریښو ودروی .

د دولت مامورینو دنوی کال په راتلو سره، نوی
کتابونه او نوی حسابونه سره پیل او کړه اود کال د سره
څخه کوښښ کوی چی خپلی چاری په ښه توګه او د خلکو او
هیواد په ګټه پرمخ بوزی او دقولنی او هیواد دپاره د
صداقت او لوړو خومتونو مصدر وګرځی .
وطن دوستان او واقعی خیر غوښتونکی کسان نوی
کال په خوښۍ، خوش بینۍ او هیله مندۍ سره استقبالوی
دخپلی قولنی او خلکو سره په زړه کښی ډیر مرمینه او
خواخوږی لری لکه څرنګه چی ئی دخپل ځان او کورنی سره
لری او دوی اراده لری چی په هیواد کښی ئی بو څوک
پریشانه، بدبخته او دناوړه ژوند خاوندشی او نه بو اړی
په خپله بوچا ته په لاس اوخوله ژبان نه رسوی بلکه نور
کسان هم د قولنی او همنوع دآزار او زورولو څخه
راګرځوی او دی ته ئی تشو یقوی چی هر څوک دیو او بل
سره مینه، دوستی او مهربانی ولری، د قولنی ترمنځ
دیووالی، ګډی مرستی او متقابل اعتماد او احترام مزی
ټینګ شی دښمنی، تعصب، تبعیض، بدبینی او نور داډول
ناوړه خوبونه له هیواد او قولنی څخه ورک او لاړ شی او
هر څوک دخوښۍ او هیله مندۍ ژوند سرته ورسوی او
یو بل ملاتړ او خواخوږه ملګری اوسی .



هر څوک دنوی کال دراتګ او پسرلی څخه الهام
اخلی خوشنود بڼ، بوهان او دردمند کسان پرته د قولنی
دخیر او ښیګڼی، هیواد دآبادی او لوړتیا او خلکو
نیکمرغی او خوشحالی څخه بل هیڅ آرزو او امید
نه لری او د پسرلی د نوی نسیم څخه هم دخپل هیواد
داعتلا او دخپلو خلکو دنیکمرغی او دهوسایښی د الهام
په اخستلو سره خپلی سالمی او مثبتی مبارزی ته دوام
ورکوی او په خپل هیواد کی د ناپوهی، ناروغی، بیکاری،
بی چارګی او داسی نورو اجتماعی آفتونو په له منځه
وړلو کی خپل ګټور کوششونه پرمخ بیایی .
هره چاره په ښه شروع او پاخه تدبیر سره ښه وی کیږی
او دفعالیت، پرله پسی کوشش او قوی ارادی د لارګ

پرمخ دروځی او انسانان بری او مقصد ته رسوی، نو
راځی چی موږ او تاسو هم دنوی کال په سرکی دخپلو
چارو شروع په پاک نیت سره وکړو، پوخ تدبیر او
هوښیاری په کار واچوو، فعالیت او صداقت وکړو
او په ټینګ عزم ځانونه په خپلو هدفونو کی بریالی
وګرځوو .

رښتیا چی ځانونه د نوی ژوند او نوی عصر
د کاروان سره ملګری کړو، ژاړه ځوبونه او ناوړه
دودونه پریږدو په زړوکی دهمنوع او قولنی دښیګڼی
او نیکمرغی کولو احساس وپالو، ژوند ته وخاندو

نوی کال ته خوش بین اوسو او دخلکو لوړتیا او
دهیواد سمسورتیا ته هیله ولرو او دبری پر لور چټک
ګامونه واخلو .

دغه دی زموږ دبری راز ولههمدغی لاری څخه
خپلی ترشابانه چاری سمولای او پرمخ تلای سو او
ولای سو چی دخپل انسانی مسئولیت په احساس او
وجدانی عاطفی په لر و سره ځان ته دلوړ خدمت مصدر
وګرځو او نورو ته دخیر او ښیګڼی رسولو دلاری خپلی
انسانی وجیبی په صداقت سرته ورسوو .

(ابو بنی)

د نوميالي ژباړه
د ښوونې اصول

له انګريزي کتابه څخه

# د ښوونې هدف

ښوونه هدف لري او دا هدف
اصل کښې اجتماعي دی.
چې موږ چا ته ښوونه کوو
ظلو د موادو دي چې له هغو سره
ره وکړو، څو دوی سمدستي

ستې مرحله کښې او هم په
بېستني زمانه د پوره ژوند لپاره
ه شي او هم د ټولنې د غړو سره
ژوندون مهارتونه او هنرونه
کړي.

حقيقي ژوندون هغه دی چې د
خلکو سره يو ځای په ګډه
د سيږي او څو ک چې يکې
د هغه ژوندن په واقعي مفهوم
ند نه بلل کيږي. په دې اساس

ټوله کارونه چې د ښوونې
له ئې کو چنيانو ته ورزده
اصلي او نهائي هدف ئې
عي دی. هغه فعاليتونه چې
نکه په حيث ئې سرته رسوو

موږ د شاګردانو سره په دې
رسته وکړو چې اجتماعي
ن ځنې جوړ شي او ددې
بيدا کړي چې د نورو
سره يو ځای ئې ژوند

که څه هم د ښوونې او
په دوران کښې زموږ د
سره سرو کار لرو او د
سره کومک کوو چې د يوه
د په حيث انکشاف وکړي
[redacted] وي

اصلي غايه مو داده چې د دوی

هر يو د ټولنې د غړي په شان دا لوی سی
او دا سی افراد ځنې جوړ سی چې په ټولنه
کې ابتکاري او تعميري رول ولو بوی
او خپلې قراري د ټولنې د ښېګڼې د پاره

په کار واچوی او دې ته چمتو سی چې
د خپلې ټولنې د غړو سره د ګډ ژوندون
او همکاری په اساس ګذاره وکړي.

ددې لپاره چې انسانان يو ځای ئې
ژوند وکړي تولې ترلږه درې شيان
ضروري ګڼل کيږي:

۱- بايد د ژوند لپاره يو عمومي
هدف او مشترکه غايه موجوده وي.
دا هدف او غايه بايد ډېر لوړ مقام ولري
څو د ټولنې غړي دې ته چمتو کړي چې
تر شخصي ګټو تير سي او د فردي منافعو
او کاميابيو مصروفيت ئې له هغه څخه

دا ونه ګرزوي. همدارنګه بايد افراد
دې ته وګماري چې تر هغو کوچنيو
آرزو ګانو ګام وانه دوي چې په اجتماعي
ژوندون کې د دوی نه پيدا کوي او دا سې
خوا ته ئې بيائي چې د وحدت سلسله ئې
ټوکر ټوکر سې.

۲- بايد يوه داسې وظيفه موجوده
وي چې ټوله ئې په اجراء کولو کښې
برخه اخلي. دا نو بايد د ټولو يوه ګډه
وظيفه وي او د هغې په اجراء کښې د
ټولنې ګرده غړي رول لري.

دا وظيفه بايد په کافي اندازه
مهمه او غټه وظيفه وي او په همدې
نسبت د هر چا فکر او تصور ور ته متوجه
وي.

ددې وظيفې اهميت بايد په
دې اندازه وي چې له ټولو څخه
وفاداري غواړي او دا ايجابوي
چې د ټولنې ګرده غړي ټوله بدنې
او روحي قواوې د هغې په سرته

رسولو کښې ته سپموي. د هغې
يو وظيفه بايد له هره پلوه اجتماعي
وي.

۳- ددې د پاره چې د هغې يو
هدف ومنل سي او د هغې يوې

وظيفې په لار کې وکړي ايښادته
حاضرشي په کار ده چې د خلکو
ترمنځ د دوستۍ احساس موجود
دی او هم وکړي دا پرهنه ولري
چې دوی له نورو سره د ګډ ژوندون

او ګډو فعاليتو په ساحه کې يوه
مشترکه غايه لري. د هغې جريانو
په نتيجه کې د ژوند د خوښۍ او قوت
سبب ګرزي او د نتيجه هغه وخت
لاس ته راځي چې موږ دا احساس

کوو چې د يوه مشترک ارمان د
سرته رسولو د پاره يو د بل په
همکاری کې ولاړ يو.

ددې خبرو يو کوچنۍ مثال
د بازيو يو ټيم هم تهيه کولای
سی

څنګه يو واقعي ټيم چې افراد
ئې خپل ترمنځ په تشکيل ولري نو
کله چې بازی کوي د يوه کل په
حيث يو د بل په ګټه زيار باسي او
هر غړی ئې هڅه کوي چې د ګرده

قيم دباره فعاليتونه وکړي. په دې جريان کښې هيڅ يو د ځان شخصي فکر نه ساتي بلکه د قيم د ټولنې غم ورسره وي او د ټولنې جمعيت د بريالي توب دپاره ځان ايثاروي.

فرد چه په هر ډول ټولنه کښې اوسي، خو دا خبره چه دې د ټولنې د يو غړي په توګه ژوندون او د ژوند کاروونه کوي دده قدرت ورزياتوي او دده ژوند ته انکشاف ورکوي.

په ټولنه کښې ژوند ده ته دا زمينه برابروي چه د ځان د اهميت احساس وکړي او له ژوند څخه خوند واخلي. له همدې پلوه ټولوي بريالي توب به برخه کيداي سي.

نو زموږ د ښوونې په ټوله دوران کې هدف دا دی چه خپلو شاګردانو ته دا فرصت برابر کو چه دوی په اجتماعي ډول انکشاف وکړي يعنې د اجتماعي ګروپونو د غړو په صفت دا لوی سي. د دغه شان اجتماعي فعاليتونو وارد اده بايد د کوچنيو ټولنو او ګروپونو

په سوبه دا شروع شي او پکښې شامل شاګردان دا سې وظايفو ته وګمارل سي چه د عمر او استعداد سره ئې سمون ولري. ورو ورو نو بيا د دوی د فعاليت ساحه

پراخيږي. وروسته به نو دوی عالي هدفونه غوره کړي او ستر وظايفو ته به لاس واچوي او په آخر کښې به د دې کار دپاره پوره

چمتو سي چه د خپلو ملګرو په ملو به ټولنه کښې د فعاليتو برخه واخلي او له نورو سره د ګډ ژوندون په ميدان کښې د ژوندانه مهارتونه

په عملي توګه ځرګند کړي. زموږ په ټولو هغو روابطو کې چه د ښوونکو په توګه ئې له شاګردانو سره لرو او په ټولو هغو طريقو کې د ښوونې دپاره ئې په کار

اچو او په ټولو هغو افکارو کې چې د ښوونې په مورد کښې کار ځنې اخلو بايد د غه نهائي اجتماعي نتيجه په نظر کې ټينګه وساتو.

له دې بيانه دا خبره راوزي چې په ښوونه کې بايد زموږ هدف دا هم وي چې د خپلو شاګردانو سره دا سې مرسته وکړو چې په دوی کې اجتماعي احساس او د اجتماعي

مسؤليت ادراک را پيدا سي هغه روزنه چې شاګردان ئې په ښوونځي کې اخلي بايد دا نتيجه ولري چې دوی په دې عادت سي چې د نورو خلکو په نسبت د خپلو اعمالو

پر نتايجو فکر وکړي. ورو ورو بايد دا ورته محققه سي چې دوی يوازې د ځان لپاره ژوند نسي کولای کله چې موږ شاګردان

په دې خبره پوه وو چې دوی بيا له ټولنې څخه خپل احتياوې نسي پوره کولای او هم د خپلو قواوو د په کار اچولو دپاره بيله ټولنې

څخه بل چيرې زمينه نسي موندلای نو په دې درس کې دا هم ورښيو چې دوی د ټولنې په مخ کې مسؤليت لري او لکه نور چې دده پاره کار کوي دی هم بايد د هغو دپاره

کار وکړي. په ښوونه کې دا هم ورته ويل کيږي چې لکه څنګه دوی حق لري او له ټولنې څخه د امتيازاتو هيله ساته د غه رنګه دوی وظائف او مکلفيتونه لري او دې ته بايد پام وکړي چې ټوله

وګړي هغه امتيازات او شيان غواړي لکه دوی چې ئې آرزو ساتي او احتيا ورته لري. په دې ډول نو د اجتماعي مسؤليت احساس بايد دوی ورو انکشاف

وکړي. د ښوونې په هدفو کې بايد دا هم شامله وي چې شاګردان د يو عمومي فکر په عادت باندې وروزل شي او هر وخت ئې دا پوښتنه په فکر کښې وي چې: «که هر څوک د غسې کار ونه کوي لکه

زه چې ئې کوم، څه نتائج به پر بنا سي؟

همدارنګه لازمه ده چې زموږ په ښوونه کې آينده په نظر کې ولرو. د ښوونکي وظيفه يوازې دا نه ده چې

هغه معلومات شاګردانو ته ورکي چې له پخوا څخه پاته سوي دي او يا په اوس حالت کې جاري دي بلکه د ښوونکي وظيفه په اساسي توګه له آيندې سره ارتباط لري.

ښوونکی هغه څوک دی چې د آيندې جوړوونکي ګڼل کيږي ښوونکي چې هره خبره او هر کار کوي بايد د هغو اغيزه د شاګردانو پر آينده ژوند باندې په نظر کې وساتي همدا سې بايد د هغې ټولنې آيندې ته ئې پام وي چې دی پکښې اوسي.

دغه د آيندې خيال ساتنه د دې خبرو حدود ټاکي چې ښوونکي د شاګردانو په نسبت څرنګه رويه ولري، دده د ښوونې طريقې بايد څه ډول وي، دده هغه

معلومات چې شاګردانو ته ئې ورکوي څه ډول دي او د ژوند په نسبت کوم سلوک

پاته په ۱۲ مخ کې

# زموږ او سني هدف

نن چې موږ د خپلو فردي او
اجتماعي چارو دسمون، دژوند
لوړيدو او دخپلو نيمگړي تياو
ليري کيدو لپاره ملاتړلي ده
غواړو چې له دغې لارې او د
ترو انکشافاتو او عصري
قياتو په وجه خپل هيواد پرمخ
زو او دخپلو هيواد دوالو ژوند
رام او مترقي کړو، نو په دغې
پرښاسه موقع کښې موږ بايد په
و مه لاره باندې ولاړ شو څو چې
خپل او سني هدف کې بريالیتوب
کړو.
موږ او س ډېرې نيمگړې تياوې
مشکلات لرو د عصري ژوند د
لو څيکښو څخه مو خلکو پوره
خه نه ده اخيستې نو موږ ته به
ردي چې د خپل هيواد به انکشافي
وڅو، د خپل اجتماعي ژوند به
ون او د ملي نيمگړې تياو به
ې کولو کښې برخه واخلو
ژوند سم او مترقي کړو.
زموږ به څير نوې مخ به انکشاف
ان هيواد ونه چه له کلونو څخه
يسې بې به خلکو کښې قبيلې
شي ځانځاني فردي منفعت او
ول تور د تاوړ و خوبونو رواج
ه لي د پرېښو د لو څخه دې برې
قې او يادې به اجتماعي چارو
د خپلو خلکو د برخې اخيستلو
ر ته پرمخ ولاړ شي.

موږ ته نن به کارده چې د عياشي
لټي، خيانت، شخصي غرض او د ځانځاني
د ناوړو خيالاتو څخه ځانونه وژغورو،
د ايثار او فداکارۍ حس به خپلو ځانونو
کښې پيدا او پياوړی کړو او به ملي
چوپړ او اجتماعي خدمتونو کښې برخه
واخلو او د ملي درد خاوندان شو.
به دغه حساسه مرحله کښې پر موږ
قولو به تيره بيا د هيواد پر منورو
روښن فکرو ځوانانو باندې لازمه ده
چې خپله نيکمرغي کاميابي او خوښي
د قولنې به نيکمرغي لوړتيا او خوښې
کې ولټوي او به کړه کوښښ وکړو چې
زموږ ترشا پاته کاروان د ترقۍ پړاو ته
ورسيږي. او دژوند انه به قولوا ړخونو
کښې مو لوړ اصلاحات راشي او ستر
پرمختگونه مو به برخه شي د انساني
قولنې د لوړ تيا ستر راز به دې حقيقت کې
پروت دی چې به خلکو کې چې خپل ولس
د اصلاح او پرمختگ خواته د هڅې کولو
احساس قوي شي خلک به دغه لاره کښې
زيار و باسي او د خپلو ملي نيمگړې تياو
اجتماعي نواقصو ليرې کولو ته پاملرنه
واړوي.
د بيدارو منورو عناصرو ډېرښت د
د تعليميافته ډلي زيا تولي او لايقو او
صادقو کسانو ته د کار سپارل يوه
قولنه او ملت لوړوي او هڅوي يا خپلو
ملي او اجتماعي هدفونو کښې بريالي
گرزوي او ستر بري يې ور به برخه کوي.
او س چې زموږ هيواد د نيک مرغي
ارتقا او ستر انکشاف به درشل کې
واقع دی زموږ به وکړو وکښي
اجتماعي احساس پياوړی او ملي
درد ژوندی شوي او قول خلک مو
دې ته پاملرنه اړوي چې خپل
اوسني پريشان حالت به ښه او
مترقي ژوند بدل کړي.
نو راشي چې موږ قول د خپلې
قولنې د لوړتيا د پاره به کړه
قدم وکړو خپله قولنه د بدبختۍ
او قبيح ژوند څخه را وگرزوو
او د ارتقا به لور ستر گامونه
واخلو.

## دلړ يا زخبرې

ډېر بې فائدې به وي چه د
داتلو نکي ژوند و خوا ته تلو گودو
او د هڅو د نيکمرغۍ د پاره کار ونه
کړو (باديس)

هيڅوک او هيڅ شی تاسو ته
بيله تاسو څخه ادبت نسي د سولاي
يعني د ادبت سبب تاسو په خپله
ياست. (هوبارد)

څو کڅ چه خپله بې پرواپي او پانگه په
عاقلانه ډول د نيکمرغۍ او بسر-
بالیتوب به لار کښې خرڅ وي د
مشکلاتو او مصيبتو څخه ځان
خلاصوي لاکن هغه اشخاص چه خپلې
پانگې او بې پرواپي ته گوري او د
هغه به ژيات والي پسې دي خپل ځان
ته مصيبت او بلاوي ډېروي له خپلو
وطنوا لو ورو نو څخه نه بايد هغه
شيان و سپموي کوم چه د ځان د پاره
ئې غواړي او ضرورت ورته لري.
(افلاطون)

دمحمد علی (خواجه) ژباړه

# اجتماعي عدالت

زموږ په هیواد کښې دڅو کلو راپه دې خوا د (اجتماعي عدالت) کلمې دژبې پر سر وده او عام وخاص په هر ځای کښې ئې یادونه کوي، داسې بریښوي لکه چې دغه مطلب په هکله تر اوسه پورې هیڅ خبر نه دي شوي او څنګه چې ښائي مفهوم ئې نه دی روښانه.

دځینو خلکو داګمان دی چې اجتماعي عدالت یو ټاکلی او مشخص شی دی او لازمه ده چې په هر ځای کښې چې دوی وي ددوی په واك او اختیار کې وي، یوه ډله بیا په دې عقیده دي چې اجتماعي عدالت او دهغه واك دحکومت او دڅو محدودو کسانو په لاس کې دی، دا ډول غلط، فیصله او ګمان ددې سبب کیږي چې دخلکو زیاته برخه دهغه شي په

سرته رسولو باندې مکلف دي له یاده و باسي او دخوش بینۍ پر ځای، قوانین، دژوندانه چارې، هر شی او هر چا ته بدبین اوسي، ښائي چې حکومتونه داجتماعي عدالت په تعمیل او خپرونه کښې دقانون دحکم سره سم پخپله برخه کې وظیفې لري چې، باید سرته ئې ورسوي او په داسې اقداماتو باندې لاس پورې کړي چې دټولنې دوګړو تر منځ هیڅ ډول توپیر

تیری او تعدا پیښه نه شي او هغه وګړي چې دوی او امکان په اندازه دعلمي او عملي پلانونو په طرح کولو دهیواد دهر وګړي لومړنۍ هیلې تر نظر لاندې ونیولی شي.

دنیکه مرغه څنګه چې څرګنده ده دغه آرزومندي دکلونو راپه دې خوا دحکومت جدي پاملرنه ځان ته اړولې او عملي مظاهر ئې دژوندانه په ټولو برخو کښې په تیره بیا دوختیا، پوهنې، عمراني او اجتماعي چارو کښې په (نسبي صورت) سره احساس کیږي.

څوك چې هر شی داحساساتو په اساس پرتله کوي دغه حقیقت څخه انکار کولی شي خو علم پوهه او سلیم منطق دا وائي چې پر یو هیواد دباندې دبې عدالتۍ کولو نوم پورې کول پخپله بې عدالتي ده.

که څه هم کارونو ته ګوته نیول ناخوښي او ګیله ګذاري دانسانانو خاصه بلل کیږي خو زموږ په هیواد کې ددغو صفتو اصلي بڼه مسخ شوې او د (مود) په پرده کې داسې ننوتلې دي چې ډیر خلك چه دخیر او ښایسته کارونه دځان بولي او ناپه او بې خونده کارونه نورو ته راجع کوي.

دامنم چې په ټولنه کې ځینې وګړي شته چې دسمې لارې او دعدل او قانون له لارې غاړه غړوي چې دهغوی عملونه دبدبینۍ او نا امیدۍ پیدا کوونکي دي. خو ځینې داسې کسان هم پیدا کیږي چې دعدالت انصاف او سړیتوب له

لاره لیکی څخه یو پل هم غلط نه ایږدي او نه په دغه لړ کښې وي چه عامه هوسائي ترسره او حق خپل حقدار ته ورسیږي.

په هر صورت باید ووایو چې یوه داسې ټولنه نه پیدا کیږي چې داجتماعي عدالت څخه څنګه چې ښائي په بشپړه توګه برخورداره وي. مګر په داسې حال کې چې دهغې ټولنې وګړي عادل او دعدالت عامل وي.

زموږ په عقیده داجتماعي عدالت اساسي او بنسټ دهر چا خپل وجدان او ایمان دی او دا کار لازموي چې هر سړی دعدالت ډیوه دخپل کړه وړه په لار کې روښانه کړي او دخپلو ځانو په اصلاح او سمون پسې شو. که چیرې موږ په دې تمه شو چې نور خلك عدالت وکړي او موږ له هغه څخه ګټه واخلو نو پخپله انساني وظیفه کښې به مو تمبلي او ناغیړي کړې وي او زموږ ټولې هیلې به بې ځایه وي.

د ټولنې د وګړو د اجتماعي عدالت طرز العمل په دغه منطق پورې تړلی دی چه هیڅ یو نظام نشي کولای چه په هر سړي باندې دهغه د کړه وړه دڅارنې لپاره یو نفر موظف او مقرر کړي او که داسې وشي نو خبره تسلسل ته رسیږي. ددې ټکي څخه هم انکار نشي کیدلای چه بیره او هیله دهر چا سره

پاته په ۱۳۴ مخ کې

له کابل څخه را لیږنه

ښاغلی اغا محمد [کرزی]

# دلته هم پسرلی دی
# او
## هلته هم پسرلی وو

وروسته له ډېرې مودې زما دا هیله ترسره شوه چې د هیواد شمالي برخې له نژدې څخه ووینم .

ما چې تر اوسه د سالنګ تونل په لار نه وه لیدلی نو دا ارمان زما په زړه کې غوټه دی

چې کله به د خپل وطن دا د عظمتونو او د تاریخي ماجراګانو په لار چې زموږ د عصر شهکار ګڼل شوې ده د امید په ډکو سترګو ګورم

څو ځینو دوستانو په مرسته زموږ کاروان د کندز په لوري به خوځېدو پیل وکړ د ما پښین دوې بجې وې چې د پروان په ښکلې سیمه کښې زموږ ګرځندۍ موټران د سالنګ په لوري په ډېره بېړه روان ؤ .

په آسمان کښې خړې اوریځې یو په بل پسې راتاویدلې او وړې وړې باران اوریده چهاریکار ته نژدې کوچنیو هلکانو د زړه راز لاله ګلونه په لاس کې ګل فروشي کوله د لاله دې ښایسته او رنګارنګ ګلو نوماته د ډېر با د کتاب هغه

لیکلی مضمون را په یاد کړ چې وایي د پروان په سیمه کښې د پسرلي پر وخت راز راز لاله ګلونه راشنه کیږي چې پر وخت ما تر پنځه دیرش پورې وشمېرل د ګل غوټۍ دارغوان په زړه پورې ننداره و نوه او یو ګړی وروسته د

سالنګ په دره ورننوتو .

څومره چې سالنګ ته ور خېژو هغو مره هوا زړه وړونکې کیږي دلته و نو په ورګټ بار ئ ی شروع کړی وه د سالنګ سیند چې په ډېر مستۍ بهیدی هر کتونکي ته ئې شاعرانه بدیع ذوق باخښه .

څومره چې پاس ختلو هغو مره د دې سترې لارې د مهندسۍ په مهارت مو آفرین وایه او له شاوخوا کتلو څخه مو خوند او کیف اخیستی .

تونل ته ډېر نژدې غره نه په ګرزوغبار کې پټ وه او باران په شرپ اوریده هوا ډېره سړه وه دلته موږ (۱۴۰۰۰) فوټه لوړ تللي ؤ ځکه غوږونه مو د رپیدل او د ستړیا احساس کیدی .

تونل د علم او تخنالوجی په کمال سره جوړ شوی ؤ . څراغان بل او لاره ئې روښانه کړې وه .

کله چې زرغونه څراغان ولیدل شوه یو ملګري وویل چې اوس موږ د سالنګ وروستنی

څوکې ته را ختلي یو او له دې وروسته مخ پر ښکته روان یو .

څه ساعت د اوریځو په لړو کې موټر سوکه روان ؤ چې مخ مو را وګرزاوه د خنجان ښکلې منظرې ته را غلو چې مست سیندئې له ډېر څخه په شور او زوږ بهیدی او مخ پر کښته به نځار روان ؤ .

څومره چې موسفر ته ادامه ورکوله د ماښام تیاره خپریده او زه په دې ډېر متاثر وم چې د شاوخواګانو د لیدو څخه محروم شوی یم .

دلته یو ملګري وویل چې د خوابدۍ ځای نه دی په راستنیدو کې به د دې لارې څخه پوره خوند واخلی .

د سترګو په رپ کې خمري ته او بیا وروسته بغلان او بیا کندز ته را ورسیدلو دا څو ښارونه ډېر ښه وو بل ته څرمه او نژدې پراته دي او دی

(۷مخ)

نوی لاری نور هم ښیځی یو له بله سره بېلی دی .

شپه په کندز کی په داسی حال کی چی باران په شرپ اوریدی دخوږ و ملګرو سره تیره شوه سهار شیرخان بندر ته چی د آمو پر غاړه پروت دی ولاړو کندز ښار مو له موټر څخه ولیدی او دخپل هدف په لوری وخوځیدو د ښار د باندی چی څه اورشو ته سولو طبیعت خپل جمال او ښکلا ښکاره کړه .

دسعدی په وینا په واقعی معنی سره فرش زمردین غوړېدلی ؤ او دبیدل چمن آئین مصداق پیدا کړی ؤ .

کاظم خان شیدا څه ښه وېلی دی :

دغنچی درباط ورپه وا کیدو دی
قافلی در نګ وبوی دروه‌ی سباشو

ونی شنی ، دښتو نه شنه ، غرونه او غوړېشنی اوزرغونی وی دسرک دغاړی دغونډیو په لمن کی دلاله ګلونه دو مره راټو کیدلی وه چی تا به ویل په شنه چمن کی داورلمبی دی نه آسا نو ګلی څریدلی دمیږو اوو ریو په زړ ګونو رمی دشنو بیدیاؤ ښایست زیات کړی وو .

په تیره بیاد کړچیا نو توری کیږدی په دی شنو چمنو کی دومره ښه راکښونکی وی چی دانسان ستر ګی لی په لیدو نه مړیدی .

ما ته په کندهار کی یو ملګری همیشه ویل چی کرزیه تا پسرلی کورته لیدلی نه دی . په رښتیا چی ما پسرلی اود پسرلی د ښکلا مظاهر بیخی لیدلی نه وه دلته زما زړه او روح دجمال مجذوب ؤ او د دی سمسوری او پرفیضی سیمی له مځکی او آسمانه می خوند اخیستی او څو مره چی په مو نظر ز غلاوه یوه لویشت توره مځکه په ستر ګو نه راتله .

دخیالاتو په دی څپڅپاندهسیند کی ما ته ستا پسرلی هم را په یادشول چی ته ئی پـه غرونو کښی ژیړ ګلونه شته اونه ئی په دښتاو راغه کی دسرو ګلو لمبی پورته کیږی .

ماته ستاد آسمان وچی اوبی فیض اوریځی هم را په یادسوی .

ما ستا هغه ورځی هم په یری ولیدی چی یو څاڅکی باران دی له خدایه په دعااوژړاغوښت .

ما ته ستا وچ ډاګونه ، سپیره دښتو نه او اوږ غرونه هم را په یاد شول ما ته ستا په د ښتونو او بیدیاکی خال ، خال ګلونه هم را په زړه شول چی دیو څاڅکی باران په تمنا ئی مخونه تک ژیړ شوی وه .

ما ته ستاد کرنک ، دامان ، ارغستان ، کدنی میل ، ژډیه او میوند وچی میری هم را په یاد شوی ما ته د پسرلی په دی سمسوراو زرغون مهال کښی چی د طبیعت هره برخه یی لـه ډیری مستی او خوشالی خاندی بزګراو مالداران دامید په ږ کوستر ګو دخپل سباد ثمر بخښونکی محصول انتظار لری .

ستا سپیره او سوځند ریګونه هم را په یاد شول چی نه دیوانسان وچی شونډی لندولای شی اونه یو حیوان په ګیډه مړولای شی .

ما ته ستا خوار بزګر او مالدار هم را په یاد شول چی نه د کال شو مه لری او نه د روژی د هیله او امید .

نو ځکه له ځان سره می په ډیر حسرت وویل چی لو یه خدایه دلته هم پسرلی دی او هلته هم پسرلی ؤ .



عبدالصمد «نصرخوا»

# په قديم آريانا کښې د جشنو او اختر وطرز

که څه هم د نړۍ مختلف ملتونه ورځ په ورځ پرمخ ځي او د دوی خصوصيات او مميزات د تير شو و زمانو سره تو پير مومي خو بيا هم هيڅ ملت نشي کولای چې پرخپلو تيرو ټولنو او د هغو پر خصوصياتو سترګې پټې کړي او د هغو په برخه کښې تحقيق ونه کړي ، ځکه د هغوی خصوصي او باستاني عنعنات د هری ټولنې

لپاره ضروري او لازمي ده او واقعاً هر څوک چې د تاريخ سره مينه او علاقه لري نو هرومرو په دا ډول چارو لاس وهي هره ټولنه که څه هم د رشد او تکامل په حال کښې وي خو بيا هم ځانو ته بېل بېل خصوصي سنن او رسومات لري چې د هغوی په ټولنه کې لوی او بارزښته نقش لري د ا ډول مميزات او خصوصيات کله کله

د دين او مذهب په برخه کښې وي او کله کله تاريخي ادبي ، اقتصادي او سياسي جنبه لري د دوی دغه رسم او رواجونه کله د زمانې په تيريدو له منځه ځي او کله باينت پيدا کوي خو د لته زمونږ مطلب دادی چې د خپل باستاني آريانا پر ځينو جشنو او اخترونو باندې چې د پرون ورځې خراسان او ننني افغانستان بلل کيږي رڼا واچوو او څيړنه وکړو .

## د جشن د کلمې معنی او مفهوم

د جشن کلمه په (اوستا) کښې د (يسنه) (Yasna) به شکل راغلي ده چې د هغه څخه مرام پرستش او لمونځ کول دي او که په ترکيبي ډول يعنی (مزديسنه يا مزديسنا) [۱] وويل شي هم پورتنی معنی ورکوي اماد سانسکريټ په ژبه کښې د يسنه کلمه په (يحنه) ( Yahna ) سره او په پهلوي ژبه کښې په (يزشن) Yazashn سره راغلي ده خو په فارسي کې ئې د جشن شکل ځانته پيدا کړيدی .

دې کلمې په مختلفو وختونو کې د قاموس ليکونکو توجه ځانته جلب کړيده ابو منصور علي د اسد طوسي زوی چې په (٤٦٥) هـ کال کې وفات شويدی په خپل قديمي

او لومړني فارسي فرهنګ کښې د جشن کلمه په (اختر او د شرابو په مجلس) راوستي ده نور د فرهنګ ليکونکو هم د جشن کلمه په داسې معنی ژباړلې ده چې ټوله يو له بله نژدې مشابهت سره لري د برهان قاطع ليکونکو د جشن معنی عيش ، خوښي ، کامراني او د خوشحاليو د ميلمستيا

مجلس بولي چې په عين حال کښې د اختر معنی دافادې متضمنه هم ده همدا ډول د عميد فرهنګ په دغه برخه کښې ليکي چې جشن د يوه مسرت اميزه امر بلنه او د اختر د خوښي بساط دی .

د آريا په باستاني دورو کښې د جشن د کلمې بيان د ننني عصر د جشن د مفهوم سره برابر ده خو په دوی کښې دغې کلمې د اختر معنی هم درلوده يعنی په لومړي صورت کښې ئې د نشاط او خوښي په تو ګه او په دوهم صورت کښې ئې مذهبي جنبه درلوده له هر نګه د (يسنه)

کلمه يعنی اوستا معنی جشن ، لمونځ او عبادت کول ده نو ځکه د قديم افغانستان جشنو نو مذهبي او غير مذهبي جنبې غوره کړې وې د عيد او اختر کلمه چې مذهبي بڼه لري د تازيانو د نفوذ نه وروسته منځته راغله او د اسلام د دين د تسلط وروسته زردشتي او بودايي اعياد ټول له منځه ولاړه او نن ورځ غير له نامه ئې بل څه نه دی پاته .

په قديم آريانا کښې د جشنو پر ځه استقبال کيده دغه

---

[۱] مزديسنا - هغه ژبه ده چې يوه حصه د اوستا په ليکل شويده او په بل عبادت د زردشت د دين پيکارندوی ده دغه کلمه د دوو خبرو څخه تشکيل ده يو يې مزده چې معنی ئې يوه او په عرف کې (د يوه خدای معنی لري) او بل جز ئې يسنا - چې د پرستش معنی لري په مجموعي ډول د هغو معنی (د يوه خدای عبادت کول دي) .

دغه مراسم چه مذهبی جنبه ئی هم درلوده په ډیره خوښۍ او نشاط سرته رسیده او په هغو کی به ئی ډول ډول

نغمی او آوازونه بربا کوله او دیوه عالم خوښی سره د دغو ورځو

نمائندګی ئی ادا او بر ځای کول خو ځرنګه چه وویل شوه دغه

عنعنوی جشنونه د زمانی په تیریدو سره له منځه ولاړه خو ځنی یی

لکه دغیږ ایستلو او نوروز جشن تر اوسه په تغیر د شکل پاته دی .

## دغیږ ایستلو یعنی کشتی مفهوم

په فارسی کی د کشتی د کلمی ریښه په اصل کی د پهلوی (کستیک) Kastk څخه اخیستل شویده

په اوستا او نورو ډیرو کتابو کښی د هغه معنی هغه مخصوص (ملاوستی کمر بند دی چی دزردشت و پیروانو ته ور کول کیده دځینو

په عقیده دغه لغت د کست KOST له ماوی څخه چی په پهلوی ژبه کی

څنګ او طرف معنی لری اخیستل شوی دی او په فارسی کی د کست او کشت کلمی هم دغه معنی احتوا کوی

او د کشت ریښه هم د کست څخه ده . د کشتی د کلمی مراد هغه ملاوستی

څخه دی چی بر ملا تړل کیدی نو

ځکه کشتی ، غیږ نیول عبادت دی دو نفرو د مقابلی او هغه مخصوص کمر بند څخه چی دغلبی لپاره تړل کیده کشتی دزنار په معنی هم دی

او دا هغه کمر بند و چی هر زردشتی دهغه په تړلو مکلف و کشتی یا ددین بندچی مذهبی شکل یی درلود

د آریانا د مذهبی مشرانو او روحانیونو له خوا په ډیر ډول جوړیدی، د سپین پسه دوړیو څخه به ئی ۷۲ تاره واوډل او هغه به ئی بیا پر ۶ برخو چی هره برخه ۱۲ تاره وه وویشلی چی د ۱۲ څخه مراد

۱۲ میاشتی وی او له ۶ څخه مراد ۶ مذهبی اخترونه وه ځرنګه چی دا کمر بند ۳ واره بر ملا تړل کیدی خود هغه مطلب بیاد (مزدیسنا) ۳ اصله لکه (ښه ویل) (ښه کول) او ښه ګمان کولو

ته اشاره وه . او دزردشت په دین کښی هر یو مکلف او مجبور وو چی په ۷ کلنی کی دغه دبند ګی بند و تړی خو په ۱۵ کلنی کی دهغه نه تړلو ګناه ګڼل کیده .

په افغانستان کښی دغه رسم ډیر اوږده سابقه لری او د مزدیسنا دستنو له مخه دغه طریقه دزردشت له مخه وه او دلومړی ځل لپاره بلخی جمشید منځته راوړه او دا معمول په پیړیو پیړیو باته شوچی دهیو اد شمال برخه کښی لکه بدخشان

قطغن او تالقان کی دا رسم مروج دی او هغه ځوک چی ځوانی او شباب مرحلی ته داخلیږی هغه ته هغه کمر بند چی (فوته) FOATA نومیږی تړل کیږی او وروسته د عمل په ډګر کښی قدم ایږدی

ددی څخه معلومیږی چی د کشتی د تړلو رسم د دی خاوری څخه نشئت کړیدی او ځرنګه چی بلخی جمشید هم ددی خاوری ؤ نو ښائی چه دا رسم وروسته تر هغه چی به دی باستانی خاوره کښی

ښکاره او رواج شو د نورو ځایو ته سرایت کړی وی .

په قدیم افغانستان کښی د کشتی تړلو جشن دهند داوپانیته د جشن پسه شانؤ او له ډیرو زمانو څخه د دغه دوو ځایو او سیدنکی په دغه قدیمی رسم کی شریک

او ګډونه صرف په دی تفاوت سره چی په افغانستان کی دغه دبند ګی بند

هلکانو او نجونو ته تړل کیدی او په هند کی دغه کار یوازی په

هلکانو پوری اړه درلوده او بل دا چی زموږ هیواد والو ترکشتی

لاندی صدره یعنی مخصوصه جامه هم کول خو په هندوانو کی دغه

کار رواج نه ؤ یوازی ئی یوه رشته تړل چی هغه هم وروورو له منځه ولاړه دبند د تړلو په جشن

کښی به د هلکانو پلار و میندو او نورو خپلوانو ګډون کاوه او دخپل توان په اندازه به ئی دعوت

ترتیب کړی ؤ په دغه مراسم کی دزردشتی کیش سره سم دغه بند

به د مذهبی شر له خوا هلک ته وتړل شو خو وروسته به بیا هلک

دهغه دخلاصولو او تړلو صلاحیت دځینو شرایطو له مخه درلودی

یعنی که په سهار و مخ په ئی دلمر ختو د خواته کی او که په ماښام

ؤ نو مخ بی ئی دلمر لویدو خواته کی اودشپی په برخه کی بی دغه کار و سپوږمۍ او یا څراغ ته کاوه

مخکښی ددی چی هلک ته صدره او کشتی و تړل شی غسل ور کول کیدی او بیا د ځو بر ورد ګانو تر تمایش

وروسته دیوه روحانی له خوا دغه مراسم بر ځای کیدله او دهغه دعا کولو وروسته محفل پایته رسیدی .

(پای)

(د۴مخ پاته)

## دښوونې هدف

ره کړي .
ښوونکي باید خپل شاګردان
سي تصور نکړي چې دوی صرف
ښي غوندې شیان دي اودی به
لوښي کې هغه معلومات اچوي
له ښوونځي باته سوي
ي. بلکه ښوونکي باید شاګردان
به بالقوه او خلاق قدرتونه
ګڼي چې ددوی تعمیري فعالیتونه
په آینده کې ټولنې ته نوی روح
کې او د پرمختګ د واقعي
املو په شان به خپل رول لوبوي
ونکي چې دغه راز فکر ولري
خپل معلومات په دې ډول
ګردانو ته ور کوي چې دهغو
شخصیت په اجتماعي انکشاف
مرسته وکړي او دده د نظر
رق تر هغه چاډیر پراخ دی .
ي ښوونې ته پوازې د تیري زمانې
معلوماتو د انتقال په سترګه
وري .
څو کټ چې په ښوونه کښې
نده په نظر کې نیسي تو دغه نظر
غو طریقو به ټاکنه کې هم بوره
ر لري چه ښوونکی کار څنګه
لي . د ښوونې د طریقې په برخه
ښي د معلم نظر په دې احاطه
ښي ته ده محدود ده چې څرنګه بوه
صه موضوع او یا د موضوع بوه
کلي جنبه تدریس کړي .
دغه راز محدودیت په خپل
ږي کې اهمیت لري خو هر څه
طریقه ده دهغې دائره ډیره
اخه او له دغه محدودیته وتلې
ښوونکي چې آینده به نظر
ي ساتي او د ښوونې نهائي
تماعي هدف خپل معیار ګڼي
ددې خبرې درک کولای سي

چې دده د کار ډیره مهمه جنبه هغه رابطه ده چې دده او د شاګردانو ترمنځ وجود لري او هغه څه چې هدف ته د رسېدو په لار کښې دده سره کومک کوي هغه طریقې دي چې دخپلو شاګردانو سره د سلوک په برخه کې کار څخه اخلي . معلم باید دې خبرې ته متوجه وي چې دی دیوه شخص په حیث څه راز کولای سي د خپلو شاګردانو سره داسې مرسته وکړي چې هغه خپلې قوې پوره په کار واچوي او د کاملو انسانانو په صفت انکشاف وکړي . دغسې انسانان ضرور باید په

اجتماعي لحاظ پوره وده وکړي . ددې بیان مفهوم دادی چې ښوونکي باید په دې ډیره سره وګرزوي چې څه راز کولای سي دځان او شاګردانو ترمنځ ثمر بخښونکې او خلاق روابط تاسیس کړي او څه رنګه د شاګردانو سره دا مرسته کولای سي چې هغه پوله پله رښتینې اجتماعي روابطو ته ورو ورو خپل ترمنځ انکشاف وکړي .

ښوونکي باید دې ټکي ته ملتفت وي چې څرنګه شاګردان تر تاثیر لاندې راولي او په هغوی کې دافکر وروزي چې په موجوده معلوماتو او کامیابیو سر کښته نکړي بلکه دیوه وسیع نظر په ساحه کښې پر له پسې تلاښونه کوي ، او هم داسې نه وي چې یوازې د نورو نظریات دځان لپاره کافي ګڼي بلکه باید خپل ذهني او احساساتي ځېلواکي ولري او غواړي دشیانو په باره کښې دخپل فکر او خپل احساس خاوندان سي .

د دغو خبرو په اساس تولازمه ده چې ښوونکي دژوند دهغو اهدافو او مقاصدو ته په زیات غور توجه ولري چې دده د شاګردانو له خوا څخه دځان لپاره ټاکل کېږي .
کله چې شخصیت انکشاف کوي نو ددې لپاره چې بو بیاوړی او فعال عنصر څخه جوړ سي دا لازمه ده چې باید یو ستر هدف ئې دځان لپاره غوره کړی وي . د هدف ټاکنه زیاتره د بلوغ په دوره کښې سرته رسېږي خو ددې د پاره چې شاګرد دژوندون بوبارزښته هدف غوره کړي نو باید له هغه وخته لا ده نه لا رسمه سی چې واردو اره ښوونځي ته راځي او په ټوله ښوونه کښې همدغه هدف په نظر کښې

وساتل سي څو چې په ډیر بریالیتوب دغه حیاتي وظیفه اجرا سي دغه کار یوازې په مستقیمه ښوونه او هدایت سرته نه رسېږي . هغه تلقینات او الهامونه چې شاګردان ئې به لاشعوري توګه د ښوونکي دژوند او دهغه دسلوک له هغې څخه اخلي پردوی خورا زیات تاثیر لري . همداسې کله چه بیل بیل مضمونونه لکه تاریخ ، ادبیات او ساینس تدریس کېږي نو داسې ډیر مجالونه پیدا کېږي چه دهغو په ترڅ کې د بارزښته هدفو نو ښه مثالونه وړاندې سي . په همدې مورد کښې آیډیالوجیکي تعلیمات اساسي وظیفه اجرا کوي .

په ښوونه کې چه د ازلو نکي نتائیج تر نظر لاندې نیول کېږي او هم د ښوونې اجتماعي اړخونه پاللکېږي نو د همدې کار پر بناء باندې د هغې استفادې حدود ټاکل کیداي سي چه ښوونکي ئې د تیرې زمانې له معلوماتو او حوادثو څخه کولای سي . موږ باید هر کله د ښوونې د پاره لازم مواد انتخاب کړو . په هر لوست کې او د لوستو نو په هره دوره کې د ټاکنې او غوره کیدو په اساس باید مواد انتخاب سي کله چه د درسي پروګرام جوړېږي نو په هغه کې باید ګټور مضامین انتخاب سي . موږ هر شي او هر څه نسو تدریس کولای .

(۱۱مخ)

انتخاب او ڤاکنه باید اجتماعی هدف له مخی سرته ورسیږی.

موڤ باید د ښوونی دباره داسی مواد غوره کو چی د شاګردانو

سره به دی لار کی مرسته وکړی چی د اجتماعی احساس او اجتماعی هدف څښتنان ځنی جوړ سی. موڤ باید له دوی سره، کومك وکړو

څو به دی خبره پوه سی چی به پلانی ځای کی او به پلانی سبب انسانان بخوانه دی بریالی سوی چی اجتماعی هدف ته ورسیږی او همدغه

بیان باید به تیره د تاریخ به درس کی پوره ورو پېژول سی. د ښوونی دباره باید داسی مواد او مضامین وڤاکل سی چی شاګردان دی تسه

چمتو کړی چی به موجوده مرحله کی د اجتماعی انسانانو به حیث پوره انکشاف وکړی او هم ئی به ڤولنه کی د راتلونکی ژوند ته به

کامله توګه آماده کړی. یا به بل عبارت موڤ باید د تیری زمانی له موادو څخه د راتلونکی زمانی به ګټه استفاده وکو، به همدی

دوران کی باید څه شیان له بیکاره شیانو څخه جلا کو او هغه درسونه تلقین کړو چی د تیری زمانی له کامیابیو او ناکامیو څخه اخیستل

کیدای سی. خو دا کار چی څه باید تدریس کو او به څه طریقه ئی تدریس کو هر کله د هغو اهدافو له مخی تعین کیدای سی چی د راتلونکی زمانی به منظور غوره کیږی.

کله چی موڤ د خپلی ښوونی دباره اجتماعی هدف لرو او هم آینده به نظر کی ساتو نو د ی

مفهوم دادی چی موڤ باید لیرا و ډیر دهغه لاری به باره کی د وبڼانه مفکوره ولرو چی غواړو بکښی ولاړ سو. دغه

کار دا نه لازموی چی موڤ باید به دی برخه کی پوه ڤاکلی او مفصله نخښه ولرو

چی د راتلونکی ڤولنه باید څه ډول وی. خو دا بیا ضروری ده چی دهغه مقصد او هدف به باره کی چی کار ورته کوو یو عمومی توافق موجود وی او هم یو عمومی لارو

لیکه چی به هغه کی غواړو پر مخ تګ وکو باید معلومه وی. لیکونکی به دی عقیده دی چی ډیمو کراسی د ښوونکی دباره دغسی یو عمومی تګ لاره

سرچینه کولای سی. د ژوند شتیانی ډیمو کراتیکه لاره هغه لار ده چی دهغی دباره موڤ د شاګردانو به چمتو کولو کی مرسته کوو.

اوس ډیمو کراسی او د ژوند ډیمو کراتیکه لار یوازی به سیاسی نظام پوری اړه نلری بلکه به دی کی مطلب او مقصد دادی چی ځوان نسل بر سمه لاره هی کړی، دوی ته هدف وڤاکی چی دهغه دباره باید زیار وکاږی، دوی ته اصول ورزده کو چی دهغو سره سم د ژوند

ڤولهای خونه سامبال سی، به دوی کی ابتکاری څه او دستر و کارو د اقدام روحیه دا پیدا کړی څو دوی آماده سی چی د بشریت به هغه بر مختګ کی سهم

واخلی چی د پوره ډیمو کراتیك ژوندون خواته ئی لار اخیستی ده.

ښوونکی به دی پوهیدای سی چی ډیمو کراسی لااقل د تیوری له پلوه څه مفهوم لری.

دوی د خپلو ملګرو سره د ډیمو کراسی به برخه کی سهم اخیستای سی او د ازموینی کولای سی چی د ډیمو کراسی

هدفو ته د عملی کیدو به جریان کی واچوی، لاکن د ښوونکو لوی کار به دا وی چی شاګردانو ته دا تلقین کړی چی ډیمو کراسی شی ده، او د ډیمو کراسی عقیده بکښی وروزی او دا عزم بکښی دا پیدا کړی

کړی چی خپل نهائی زیار وباسی او ڤولنی ته له هر پلوه یو ډیمو کراتیك رنګ ورکړی. که ښوونکو د ژوند ډیمو کراتیکه لار د آینده دباره د یو هدف به توګه

ومنی، نو به دی اساس هغه اصول

ڤاکل کیدای سی چی باید دی له هغو سره سم کار وکړی. همدا رنګه هغه طریقی تعین کیدای سی چی دی استفاده ځنی کوی او هغه

لوړی معلومیدای سی چی د خپلو شاګردانو لار ښوونه ورته کوی. له دی خبری څخه انکار نسی کیدای چی آینده به جریاناتو کی ښوونکی ډیر مؤثر دی. که څه هم دی د درسی

کوڤی به پوه ګوټ کی ناست دی خو کولای سی له بشریت سره به هغه مبارزو کی مرسته وکړی چی د بشر ژوند د راتلو دباره روانی دی او یا به هغو کارو کی امداد وکړی چی اوسنی تمدن د نړوی او د محوی

خواته ئی بیائی. هر ښوونکی ضرور دهغه څه انتخابوی چی د کړو آرزو ئی لری.

(پای)

د ۶۵ مخ پاته

# اجتماعي عدالت

...نه څه چې وایو بیاني کوو دا دوه
...عنصره په هغه کې بې تاثیره نه دي
...ګه بیره منع ته راځي د قانون د
انحراف او خجالت څخه وي او که
...له پیدا کیږي د هغه د ښه عمل
...بدلي او اجودي انګیزه وي .
...ر، اهیلي او نیاز منديه د قولنو په
...جتماعي حالاتو کښې زیات ایډیل
...لیږي، کله چه د پوهنې او روزنې
... کبله وګړي خپلې فکري وده
... و د سیه د ل قول فردي او اجتماعي
...تکلفیتو نه ملکه کیږي چه په هغه
...خت کې نه یېري ته ضرورت وي او
...هیلو ته په دغسې قولنو کښې د
...انون، پلټونکي او پولیسو پر
...عمای د سړي زړه او وجدان
...کمراني کوي او د دغه باطني
...ا په وسیله هر سړی خپل او د بل
...ق پېژني او د هغه احترام او
...ناوي کوي او په دغه ترتیب د
...و لو طبقاتو او افرادو تر منځ به
...بادي او عملي توګه اجتماعي
عدالت پر اختیا مومي .

په اوسني زمانه کښې هغه
...لس کولای شي چه د زمانې له پېښو
...څه ځان بچ کړي چه د خپل محیط
...و قولني حالات د پوهې منطق او
...لیم قضاوت پر اساس مطالعه او
...و د علت تر پیدا کولو وروسته
...زیه له کومې د هغه چاره او اصلاح
...مي شي، خپل وجدان سترګې
...ول، قولو پدیدو او ارزښتو ته
...منفي نظر کتل او له حقیقت څخه
...ار کول د مصلحت او خیر لار نه ده.

زموږ په قولنه کې چې د زده
...ړې (لیك او لوست) فیصدي
...یره کمه او اجتماعي روزني
...ده نده کړي په عمومي بشپړه توګه

اجتماعي عدالت ته تحقق ور کول د مشکلاتو نه خالي نه دي ځکه ځکه چې د موږ بل تر څو چې د هیواد قول وګړي یو تر بله د راستي، صداقت او حق ویلو طریقه غوره نکړي او هر څوك په هر کار کې چې دی دا د او انصاف خپله وظیفه و نه ګرزوي زموږ د ملي آرزو ګانو په بڼ کښې به څېرې د ترقۍ او پرمختګ ګلان و نه غوړیږي .

که د بد بیني عینکې د خپلو سترګو څخه لیرې کړو او خپلو ادارې او اجتماعي کړوړو یو باندې بې له هر ډول بغض، رخې او بد بیني څخه یواځې او یواځې د عیني واقعیتونو له مخې فیصله وکړو نتیجه به ئې دا وي چې هر شی موږ ته رسیږي زموږ دي یعنې زموږ د اعمالو انعکاس دي او د هیڅ یو مقام په هغه کښې دخل نشته د مثال په ډول هیڅا هغه رشوت خور ته نه دي ویلي چې د خپل ورور کار د پیسو په تمه پخپل وخت کې تر سره نکړي په نن او سبا ئې وغځوي او میاشتې ور باندې تیرې شي، دکاندارانو ته هیڅا ندي ویلي چې د نرخونو په لوړولو کې سیالي وکړي، زده کوونکو او محصلینو ته ندي ویل شوي چې لیك او لوست و نکړي .

خو ځنګه چې هغه رشوت خور د اتفاق له مخې یا د قانون د تعقیب له کبله په لومه کښې بند شي او د رسوائي نغاره ئې په هر بازار کې وږنګیږي او یا هغه دکاندار د ښاروالي په تعقیب سره جریمه شي یا د هغه متعلم پر تندي باندې د ناکامي ټاپه ولګیږي نو له دې بې عدالتي څخه نارې وهي او وائي چې پوښتنه او بازخاست نشته، عجب انصاف دي چې د مسلمانانو مالونه وړي او کله چې ستا مال چا یو وړ نارې وهي چې مسلماني نشته .

د اسلام سپیڅلی او پاك دین له نورو قولو ادیانو د اسلام په ارزښت سره عدالت خوښوي او هغه له تقوا څخه شمیري د غه مسئله د اسلام له نظره تبلیغاتي او تشریفاتي جنبه نلري بلکه د اسلام او د دنیا تاریخ د دې خبرې شاهد دی چې دغه غوښتنه کلونه کلونه په اسلامي قولنو کښې په عملي توګه تحقق موندلی او د اسلام لارښوونکو او مشرانو څخه په دغه باب کې کار نامې شته .

که چیرې زموږ سره د آسماني مضبوطو احکامو او د بشري قوانینو د ټینګکارۍ او انضباط سره بیا هم د سمې لارې څخه واوړو او هغه شی چې موږ د انتقاد ګوته ورته نیسو پخپله هغه ته لاس واچوو نو هر زیان او تاوان چې موږ ته پیښ شي هغه به زموږ د عملونو انعکاس وي او د هغه لپاره به د دوا او چاره نه وي .

راځئ موږ او تاسی هر څوك چې یو او په هر کار کې چې یو د اجتماعي عدالت د تأمین او د ملي سپیڅلي هلې د ترسره کولو لپاره لومړی خپل ځانونه اصلاح کړو او که چیرې د خپلو ځانونو په اصلاح کې شك او تردید ولرو د نورو څخه د سمون او اصلاح هیله درلودل بې ګټې ده، په دغه لار کښې بری زموږ په همت پورې تړلی دی .

ښائي چې ځینې مشکلات او خنډونه موجود وي خو د همکارۍ او خیر غوښتنې د روحیې په درلودلو سره کیدلای شي چې په قولو لویدو باندې غالب شو او د نیکمرغۍ برخوالاره پرانیزو .

لوی جهاد هغه دی چې سړی د خپل نفس سره کوي تر څو چې د لوی خدای له نافرمانۍ څخه بچ شي .

(پای)

«نصرت»

# دژوندانه‌لار

لەدې کبله چه انسان یو اجتماعي مخلوق، او مجبور دی چه د مادي ژوند پر غولي، د اجتماعي او ضروري چارو د پر مخ تګ دپاره له‌دوستانو او

ملګرو سره تماس پیدا او آخر مکلف دی چې د کورني ژوند په تلاښ او موندلو کښې هم لاس او پښې ووهي لکه چې دانګلستان یو نامي ایکوال (سیسرون) لیکي:

(څوک چې په دې نړۍ کې ځان د نورو خلکو له دوستۍ او ملګرتیا څخه بې نیازه بولي، داسې کسان دي چې لمر ته وائي غروب وکړه او بیا دغره پر څوکه مه ښکاره ږه، ځکه چه ستا تاریکي او روښنائي پر موږ یو شی ده) همداسې یو بل لیکوال دژوند دخوښۍ په باره کښې وائي چې: (ډیر ښه ګړۍ هغه دی چې

د کور د خونۍ په منځ کښې دخپلو نږدې کسانو سره ناست، او د صمیمیت په فضا کښې صحبت کوو) له‌همدې امله که چېرې اوس موږ وخپل اجتماعي او کورني اوسني ځنجالي ژوند ته متوجه، او غور وکښو وګورو ښائي چې په سرسري نظر به تر تیر، خپلو عیبو او نواقصاتو ته به هیڅ ګوته ونه نیسو

او که د موضوع د حقیقت ته په ځیر وکتل سي، نو دا به را ته ښکاره او د به‌وایو رشتیا همدا ده

(۱۴ مخ)

چې زموږ اوسني کورني ژوند د زیاتو کورنیو بدبختیو شخړو او خواشینو څخه ډک، او یوازنی عامل ئې فقط زموږ اخلاقي ضعف

او فکري فقر دی. د مثال په توګه، که موږ په خپل اوسني ژوند کې له خپلو دوست سره مخامخ، او د صحبت په ترڅ کې پوښتنه وکړو آیا

غواړې چې د ژوند دوښا نه‌ږ یوه مود زماني دخواشینۍ او پریشانیو په غبار آلوده. او د کورني غلیم لاس دربانده بروي؟ ښائي چې

هغه دوست به‌موږ لومړی متحیر او که دسمې وراشي خاوندو نو را ته و به‌وائي چې کورني غلیم یعني

څه؟ که‌چېرته موږ او تاسې دخپل محیط وا وسني ژوندانه‌طرز ته

په‌عمومي نظر، او د کورني ژوند حرکاتو او سکناتو ته به خصوصي توګه وګورو، نو دا به

را ته څرګنده سي رشتیا همدا ده چې نن زموږ زیاتره دوستان

او ملګري د دوستۍ له‌شیریني او د صمیمیت له نعمت څخه، محروم

او بلکه عجیبه لاهم دا ده چه د نن ورځې دوستۍ او رفاقت په‌عنوان چوکاټ کې په‌لویو لویو دښمنیو اخته

او حتی ناوړه ی نتیجې ئې هم ښکاره شوي دي. د مثال به‌توګه زیاتره وینو چې په اکثرو قومو

کورو او بازارو کې نږدې دوستان د ورځني ژوند په جریان کې په ناڅه، ناڅه شیانو او خبرو باندې تر له وتلي، د دښمنۍ او عداوت اور بې بل او سره ډک توپک وي.

اوس نو که چېرې موږ د دغه مرموز رنځ او ساري دښمنۍ و مبداء ته نظر واچوو، نو بې له‌دې چې د یو کوچنۍ

خبرې څخه ئې سر چشمه اخیستې وي بل علت بې نه ښکاري، او د دغه علت

موجب همدا ده چې لږ ډیر په عمومي صورت د تعلیم او تربیې له‌مزایاو څخه

محرومیت، او هم دژوند کولو په صحیح مفهوم او د معاشرت په‌آدابو نه‌یو آګاه شوي.

نو څرنګه چې زموږ موجوده ژوند یو موقتي شکل لري

یعني یوه ثانیه ئې بیا په ډیر څه لاس ته نه راځي. نو ښائي چې د خپل دغه موجوده‌ژوند د یوې لحظې خوښۍ د کلو

کلو د پریشانۍ او خوابدۍ پر ژوند باندې ورنه کړو، او ددې دپاره چې زموږ ګران وطنوال د دغه کورني

غلیم له‌منګلو څخه چې په کلونو کلونو ئې زموږ د اجتماعي او کورني ژوند

هډې او ماغزه را مسموم او خطرناکه کړي دي دغه له‌شا او خوا تاوانو څخه

خبر دو ځا آرام، او خپل ورځني ژوند په‌خوښۍ، دوستانه او د صمیمیت په‌فضا کښې تیر کړو.

دنړۍ مشهور ادبي آثارو څخه:

# دپسرلي نغمه

سوړ ګل: دسهار ښکلې نسیمه:
ستا په پیام به څوک خبرېږي؟
سهار وختي دی چې بیادې ور
راوښکاوه؟!...

دسهار نسیم: ښکلي ګله! ته که
زما په خبره پوهېږې که نه، خو زه
پوهېږم چې ته دچا دوصال په
انتظار کې یې، وګوره سپېدې
چاودلې دي.

زما ګله! زه دا غلم چې تا
له خوبه وېښ کړم!.

دچڼچڼې مرغ شو: څوک
خوا ته د راته ووایه، په دې لوی
سهار مې څه خالي ژنګوي؟!.

دسهار نسیم: ګرانې چڼچڼې!
ته که دا پوهېږې که نه؛ زه خو
درپوهېږم چې تازه بابللې دی.
وګوره سهار دی، ما دلوی فضا
پیغام درته راوړی دی!
وله په ننداشوه ویې ویل: به
ژبه دې نه پوهېږم دا دومره
ناآرامي دڅه دپاره ده؟

دسهار نسیم: ښېني قولپ! ته که
پوهېږې که نه؛ خو ما ته هغه مقصد
هر ګند دی چې ته یې لالهانده
یې اما دهغه لوی سیند مستا نه ښا
تر تا پورې را ورسوله؛ او هغه ښا
مې ستا په څپو ژده کړه!.

بیدیا وویل: خبره نه یم چې
هر سهار مې په خپلو قدمو نازوي؟.

# ولوب ګونه

## ښکلي ګله!

ګله! ته چې ښایی ددې چمن یې
خار و خس و ته په څه په خندیدن یې؟
دخپل ځان په قدر ولې نه پوهېږې؟
په دې باغ کې خو یو ته نازکبدن یې
دبلبلو مرغ به تل دربانده نه وي!
ښکلي ګله! په وفا کې مېرمن یې
په خپل بوی د بلبلانو خاطر خوش کړه!
بو څو ورځې چې تازه په دا ګلشن یې

(خوشحال)

انګلیسي ادب:

## زړه اوژبه

پاسته او له شفقته ډک زړه نه
دهغه بې په شان دی چې له ګلو نو
څخه ډک وي.
انکار او آرام ددې بې
سې کونه، او خوږې خبرې یې شکوفې
او ګلونه دي.
په کار و نه ددې بې ښې او خوږې مېوې دي.
په وینا وي هر چېر ته چې وي هغه ځای دلمر په شان روښانه کوي
خوږه خندا ددې لمر پلو شې دی چې له خوشحالی او مسرت سره
کړې وي.

## عرق

دا پر مخ دی ګلبدنه عرق ځاځي
که شبنم دی چه دګل پر ورق ځاځي
زر غرنه کاندي ګلونه اون اون
دا بان چې دزمین پر طبق ځاځي

(حاجي جمعه ګل)

## ساقي ته ګوره

باران او ربې ځحوا کې ځاځي
نسیم دا والو وت بلبل پرې ناځي
اسباب دعیش وا ړه موجود دي
ساقي و ته ګوره چې دي را پاځي

(عبدالقادر خټک)

## څلوریځه

بوې ورځې سهار ووې په خندا کې
دا قانون مدام جاري دی په دنیا کې
چې ضعیف د زورور دخوا کې ورده کېږي
لکه ورکه چې سپوږمۍ سي دلمر خوا کې

(الفت)

# دشو نهاومی

خو بېخوده د سرو شونډو په مې نه شم
په نظر د سرو سترګو سړی نه شم

داشنا د مینې هسې میخانه ده
چې دیدن ارهئې ورسم تری تلی نه شم

چیری نه چې له نظره شي دلبره
له دهشته دي ومخ ته کتلی نه شم

پېدربار د معشوقو کې نه قبلیږي
خو له خپلو آشنایانو پردی نه شم

په کومې د زنخدان کې چې خو که بربوزي
وایي داچې ختی نه شم ختی نه شم

تهمې هسې دروغجن په ینه بولې
که سپندغوندې تر آنه لوګی نه شم

که دي ئیت وي دیاري تر ما به راشې
زه «حسین» په ځکندن یم در تلی نه شم





## بې تا خوند نه کوي

هو! د سهار نرۍ وږمه چې ورو، ورود مرغانو ناري ورسره راپورته سي ښه خوند کوي ...

ښکلي لمر چې لوړي وار پخپلو ښکلو وړانګو، ځنګلې، ونو، بوټو، او ګلانو ته رنګ ورکړي ښه خوند کوي ...

ځلانده پرخه چې ورو ورو پر پاڼو ویلیږي ښه ښکاري ...

معطره ځنګله ترلنبو بارانو وروسته ښه ایسي ...

د مازیګر رانګ، وروسته بیا شپه، د شپې چپه چپایي، او هغه نوچني مرغان چې په چڼهار پیل وکړي او سپینه سپوږمۍ له ستورو سره، ښه ننداره لري ...

خو آه! نه د سهار نرۍ وږمه، نه د لمر دراختو ښایست او منظره، نه د ګلو پر پاڼو د پرخې ویلیدل، نه د ځنګلې او ګلانو عطر ....
نه د مازیګر پاکه فضا او نه د شپې چپه چپایي

نه د سپوږمۍ ښکلي وړانګې، او نه د ستورو ځلیدنګ ....

دا ټول هیڅ، او بې تا خوند نه کوي!

(۱٦ مخ)

## د مرغانو نغمې

په رشتیا چې موږ ښه ژوند لرو، رنږونه کوو الوزو، له یوه ښاخه بل ته ځو .

زموږ ښه آوازونه په ټول ځنګله کښې منعکس، او انعکاس ئې د هرچا غوږونو ته خوښي ورکوي، موږ تکړه او له غمه ازاد یو .

هغه څه چې موخوښ وي هغه مومو، هرچیرته چې وزرونه وغوړوو تلای شو - هرځای زموږ د خوړو دسترخوان هوار دی .

کله چې زموږ ورځنی کار پای ته ورسیږي هغه وخت بیا په ونو کښې کښېنو، دپه په ډېره آرامي او خوښي سبا کوو، ددغې شپې خواږه خوبونه موږ ته غنیمت دي .

کله چې سهار سي - د لمر وړانګې موږ له خوبه ویښوي، دغه وخت موږ خپل وزرونه خپروو، په دنیا کې آزاده الوتنه کوو او خپلې خوږې نغمې شروع کوو .

دا دي د آزاد ژوند لذتونه .

## د ښځې وفا

د بغداد په یوه ادیره کښې یوه ښځه په قبر ناسته وه او پکه یې وهله .

چا ورته پوښتنه وکړه چې:

دا ولې ؟

دې ورته وویل :

دا زما د میړه قبر دی او ما ورسره وعده کړې وه چې تر څو ستا د قبر خاوري وچې نه شي تر هغو به بل میړه ونه کړم

(له عربي منابعو څخه)

لیکوونکی قمره «اڅکزی»:

# جمیله

## دالجزایر دخپلواکۍ قهرمانه

جمیله بوپاشا دالجزایر دخپلواکۍ لویه مبارزه او قهرمانه وایي: «تر هغو چې په نړۍ کې بې وزلي او د استعمار تر یوغ لاندې وګړي موجود وي او به زما په ستوني کې تیغ وي»

جمیله بوپاشا د الجزایر د آزادۍ قهرمانه په ۱۹ کال کښې په الجزایر کې زېږېدلې ده د دې د ...موالي دوره د مور او پلار تر څنګ چه ... هم بزګران تیره شوې ده او په ښوونځي کې چه ... وروسته یې وویل ... ازادۍ په لیکې چه دې زده کړې اراده، مبارزه او انقلاب و ... د دې با شهامته پېغلې عمر ۲۲ کالو ته ورسېدی چه الجزایر د انقلاب قهرمانه وګڼله شوه .

... د مبارزې د قصو څخه یوه دا ده چه د ... لي به شپږ ورځو ... دیوه ډوډۍ ته سپاره یوه مسلمان اوسېدونکي قصبه ... د فرانسویانو د پلیسو له خوا د خپل وطن او خاورې د ... آزادۍ او ملي ناموس د ساتنې په جرم ونیول شوه او ... زندان ته یې وسپارل .

... هو جمیلې د یوې غیرتي پېغلې په صفت د خپلې مینې او ... ناموس د ساتنې له پاره چه د هر انسان وظیفه ده څو د ... خاورې هره لوېشت په وینه وساتي زیار ایستلی دی .
خو دا د دې جرم په کولو د زندان په دوره کې د دومره ... ار او شکنجې سره مخامخ شوه چه بالاخره مرګ ته یې نږدې کړه خو د دې با شهامته نجلۍ پر استقامت او مېړانه یې کوم اثر ونه کړ بلکه د دې د غیرت ابدي شهرت او تاریخي افتخار اتو د قول الجزایر د آزادۍ غوښتونکو ملت وینه په غورځنګ راوسته او د استقلال تنده یې شدت ورکړ .

دغه وخت و چه د جمیلې د اعدام خبر هم خپور شو چه دا آوازه یوا قومي بڼغ و چه جهان ته یې ټکان ورکړ خو دې د خپل اعدام د خبر په اورېدو بیا هم په خورا شهادت او بې ساري مړانګې د فرانسویانو قضاوتو ته داسې وویل:
چه تاسې زما په وژلو خپل د آزادۍ غوښتلو عنعنات ورک خپل افتخارات ننګین او بالاخره د اتلو ونکي مو په خطر کې اچوی .

دې په یوه بله قولنه کې داسې وویل: «تر هغو چه په نړۍ کې بې وزلي او د استعمار تر یوغ لاندې وګړي موجود وي او به په زما په ستوني کې تیغ وي» .

دا چه هر ډول فشار او شکنجې د دې عزم ته سر ټیټ کړ نو د نړۍ د ملتو له خوا په ټینګه پشتیبانۍ سره د اعدام او بالاخره د زندان څخه خلاصه او د هېواد د خپلواکۍ تنده یې ماته شوه .

([illegible] مخ)

پر سیاسي پېښو تبصره:

د عبدالمنان امین په قلم:

# عربي مثلث اتحاد

څو ورځې د مخه د عربي متحد جمهوریت لیبیا او سوریې مشرانو د لیبیا په بنغازي ښار کې د یوه فدراسیون د جوړېدو سره موافقه وکړه. د دې عربي اتحادیې د هغو دریو هېوادو ګډون کوونکي چې په فدراسیون کښې دي له هر نقطه نظره د اهمیت وړ دی.

عربي فدراسیون چې په حقیقت کښې د هغو کوښښونو محصول دی چې د عربي متحد جمهوریت مشرانو د دیارلس کلو راهیسې کړې دي.

د عربي مثلث اتحاد لمړنی اساس تېر کال د نوامبر په شلمه نېټه په قاهره کښې کښېښودل شو او د فدراسیون غړو هېوادونو موافقه وکړه چې د اسرائیلو په مقابل کښې یو مشترک سیاست غوره کړي هغه وخت سوډان هم په فدراسیون کښې د ګډون اعلام کړی وو.

د دې فدراسیون په جوړېدو سره له یوې خوا هغه لیرې والي چې د جزئي اختلافو پر اساس د عربو تر مینځ پیدا کېده له مینځه ځي او له بلې خوا عربي هېوادونه هغه پخواني ته مرام رسوي چې د اسرائیلو پر ضد د دې فدراسیون د جوړېدو په باب ئې لري.

که څه هم د دې فدراسیون د جوړېدو مفکوره پخوا د متحد عربي جمهوریت فقید جمهور رئیس جمال عبدالناصر د زعامت په وخت کې پیدا شوه خو تر هغه وروسته د هغه سلف د متحد عربي جمهوریت مشر انور السادات لخوا دا مفکوره تقویه شوه او د انور السادات، حافظ الاسد او معمر القذافي د دوامدارو خبرو په نتیجه کښې فدراسیون جوړ شو.

( [illegible] )

د دې فدراسیون د جوړېدو د خبر د عربي هېوادو او د اسلامي نړۍ د بېلو بېلو حکومتو لخوا د عربو د تقویت او یووالي د پاره هر کلی وشو. د فدراسیون یو مهم خصوصیت دا دی چې یو جمهور رئیس او یو بیرغ به لري مګر د دې هېوادونه به د ملګرو ملتو په موسسه کښې خپلې څوکۍ وساتي د سوډان د دولت رئیس جعفر النمیري چې د متحد عربي جمهوریت سوریې او لیبیا د مشرانو د خبرو او غونډو په لړۍ مرحلو کې ګډون درلود او وروسته له هغه له قاهرې څخه د شوروي اتحاد د خوا ته لاړ د فدراسیون د جوړېدو وروسته وویل چې باید سوډان لومړی د خپل اساسي قانون د جوړېدو او ملي موسساتو د تاسیس لو کار پای ته ورسوي او پس له هغه به عربي اتحادیه کښې د ګډون د پاره تصمیم ونیسي.

د دې ګونو هېوادو د فدراسیون د راتلونکي جمهور رئیس په باب به یو ریفرندم وشي.

د دې فدراسیون ټول شامل ملتونه یو ملیون مربع میله رقبه لري یو ډول سرود او یوه ملي اسامبله او یو فدرالي قضایي دیوان لري د دغو

د دې واړو جمهوریتونو هیڅ یو سیاسي حزب به دا حق ونلري چې د بل هېواد په خاوره کښې فعالیت وکړي، د متحد عربي جمهوریت سوریې، لیبیا ګډ فدراسیون

د مصر او سوریې د ۱۹۵۸ کال د اتحاد څخه وروسته د عربو په نړۍ کې لومړنی قانوني اتحاد ګڼل کېږي د دې اتحادیې جوړېده له څو جهته د اهمیت وړ دی او په وضاحت سره ښکاري چې د عربي نړۍ له ګټو څخه دفاع کوي.

دا اتحادیه عربي ملتونو ته اجازه ورکوي چې خپلو ټولو نظامي حرکتونو ته توحید او انسجام ورکړي او د یووالي تر سیوري لاندې به ټول د واقعاتو پر ضد مقابله وکړي.

دا روښانه حقیقت څرګندوي چې د دې اتحادیې د جوړېدو سره سم د عربي فدراسیون په مقابل کښې د دښمن لخوا کوم اقدام نشي کېدلای.

اوس چې اسرائیل د منځني ختیځ د بحرانو د لیرې کولو د پاره د بولې مشکلاتو سره مخامخ شوی دی د دې اتحادیې جوړېده اسرائیلو ته اخطار ورکوي چې د فدراسیون د شاملو هېوادو یووالي او ټول قدرت د هغه په مقابل کښې ولاړ دی

د بنغازي د خبرو په پای کښې داسې وویل شوي دي چې د دې فدراسیون یو مهم هدف دا دی چې د دې ګونو هېوادو قواوې د یو او بل خاورې ته تلای شي

اوس د عربي هېوادو قواوې کولای شي چې د سوریې خاورې ته ورشي او په دې صورت کښې د عربو د قواو چې په عصري وسلو سره

پاتې په ۲۵ مخ کې.

قمره «اڅکزۍ»:

# د میرمنو د نن ورځ

## اجتماعي او تربیوي مسؤلیتونه




قوله هغه هیوادونه چې ښ
ښ قې ېې اوته رسیدلی او یا به دې
ې کړي دي چې دخپلو وګړو د ډله ایتو
برکت چې لوی او اساسي عامل
دهغې قولنې د خلکو فردي او
اجتماعي ژیاړ او د ښځو او نارینو ګډه
ګکاري او د فکر او عمل یو والی
لوړ شي ورته لازمه ده چې
د قه لاردروان شي .

ښ برون چې د ټې ه هیواد ود د
لو اجتماعي ژیاتو فعالیتو
یاده د ښځو او نارینو د حقوقو
امتیاز اتو د پاره کو ښښونه
ي دي او میرمنو به قولنه کې

اجتماعي، تربیوي او فامیلي
وی برمخ بېولی دی او یابه
اسي چارو کې ښ لا ړلري
وی مسئولیت تر پرون زیات

د هر وخت څخه حساس شوی دی.
د هر ډول ښوونې او روزنې
څخنګه د دوی مسئولیت د زمانې
عصر د ایجاباتو او غوښتنې سره

د ماشوم د روحي او جسمي
ن کړ ای ته پاملرنه کول اوس
مسئولیت دی چې د راتلونکي

ژوند پر اوږه درسیدو او دژوند
د ساحې د پراختیا د پاره دوی
کوښښ کوي .

میندې دې چې باید په خپل
خاصه پاملرنه د ښ کوچنیانو د
تربیې ر سې د سیاد ځوانانو او
د قولنې د معمارانو په صفت

پرې نږدې چې د کور او کهول
دلاري ورانه سي او یابه کورنی
ژوند کې د اخلاقي روزنې او اساسي
پالنې له نعمته څخه بې برخې شي.
که پرا رشتیا سره سوچ وکړو
او په څیر شو تر ژیاتې اندازې
داوسنی او د راتلونکې قولنې
پرمختګونه او پراختیاوې د میندو

او پلرونو په لاس کې دي او څرنګه
چې ماشوم خپل دوره کتوب دوره
چې د فکر او جسم د شروع د تحول
او باطني شعور دژوندې کولو

په ساحه کې لومړۍ دوره ده
زیاتره د مور او کور په غیږ او
پوهو میرمنو په طرز تفکر، عملي
اجراآتو او ورځنی کړنې د
ماشو مانو په شعور او باطني
دستګاه بانندې ستره اغیزه
کوي .
میر منې په ژوند کې پر ته
له ځینو موارد و د د نارینو سره
برابر حقوق لري او په مدني ژوند

کې لازمه ده چې له نورو حقوقو څخه پوره
ګټه واخلي او د ورځنی اجتماعي
مشکلاتو او پرابلمونو د حل کولو په برخه
کې د نارینو سره په یوه لاس کار وکړي.
یوازې د کور ساتنه او د ماشوم روزنه
هم د دوی وظیفه نده بلکه په ټولو هغو
چارو کې چې انساني قدرت کار کوي
او د وګړو او هیواد د پاره د ژوند
د تیاردولو لپاره ژیار باسي د میرمنو
وظیفه ده چې د نارینو په مرسته او
همکارۍ د ژوند قوله چارې مخ ته
بوزي او د علم او پوهې له دنیا سره اشنا
شي د خپلو حقوقو د غوښتنې او استفادې
ادعا وکړي او په هره وسیله چې وي
ځان او نور د ژوند د ښه کیدو په منظور
مبارزه وکړي او د همت ملا وتړي. هغوی
چې دا فکر کوي چې تر کور د باندې
کار نه کوي او یا ضرورت ورته نه لري
د لوی اشتباه سره مخامخ دي ځکه کار
انسان یوازې د ځان لپاره نه کوي د
نورو ژوند د لته ضروري دی چې بې نور
په بې د کار وجود نه اوتیاو لري.
منو ر و ېرمنو د ځان، قام او ملتونو
د تکامل او تدریجي سیر په تاریخ کې
ډیر ستر کارونه سرته رسولي دي او
سیاست په صحنه کې دستري مبارزې
په مرسته لوی او کمښې ور په لاس سویدي.
د ښاغلو نارینو وظیفه د اده چې
د بشري حقوقو د احترام په ځکله هیڅ
ډول فرق د وګړو ترمنځ دا نه ولي او په
هره وسیله ژیار و باسي او خپل ورو ستنه
پاته کیده د ګټه ی مرستې او کار له لارې
بشپړ کاندي .

د محمد عظیم هوښمند څیړنه او لیکنه :

# ولې بېرېږو؟

# د ارخر نګه له ځانه لیرې کړو؟

## د وحشتناکو او بېړونکو بېرو څخه څرنګه ځان وژغورو؟

د «فوبیا» اصلي معنی ډار یا وېره ده ، کله ، کله ډار ، بېرموږ داسي ډول باندې غلبه کوي مثلاً هغه کار کوو چې موږ ته مشکلېږي د بای تر رسولو اقدام کړی وي او غوا لو چې پای ته يې ورسوو ، د نوموړي کار له نتیجې

څخه بېره پرموږ غالبېږي . او یا هغه وخت چې ځینې کسان په سفر ځي ، بوه بې اساسه وېره ورته پیدا شي ، خو داسي وېرې چې د یوې خاصې پېښې له کبله منځ ته راځي فوبیا نه نومېږي .

(فوبیا) داسې یو روحي ، ذجر ، او رنځ دی چې په دایمي توګه په ډېرو وحشتناکو او وېرونکو ډول د انسان په وجود کښې راپیدا کېږي

او دا وېره نسبت نورینو ته په ښځو کښې زیاته موثره او اغېزمنه ګڼل کېږي .

د فوبیا ناروغي ډېره متداوله ده ، مثلاً د (غفی)

او نورو حشراتو څخه بې دلیله وېره په داسې حال کښې چې بناي هغه هیڅ تاوان چا ته ونه رسوي .

داسې احساس په ډېرو کښې په ځانګړي ډول لیدل کېږي ، بوازې تو بېرلي په دې کښې دي چې ځینې د ما دانو ،

نو ریاد الو تونکو بلکه له ډېلو پیا له موږ کا نو څخه بېرېږي د دغې ډول ځینې کسان پیاله لوړو برجوا وهسکو غرو څخه ډار لري ، او داسې اشکال کوي چې ، هر و مرو به له پورته او لوړو څخه لاندې راولوېږي .

دا ډول بېرې تر هغه بوري چې دور ځنې کار او د پای ته رسولو ، مانع و نه ګرځي ، دومره د تشویش وړ نه دي مګه چې سړی د لوړو څخه له تګه نه اجتناب او لیرې

ولي او حشراتو ته د نه کتلو په واسطه کولای شي چې دا اندېښنه له ځانه لیرې کړي .

ځینې داسي وېرې شته چې د انسان ورځنۍ ژوند ته د فلجیدو سبب ګرځي د مثال په توګه بو ډول خلک د سرطان

په ناروغی د اخته کېدو وېرې داسي مشوش کړي دي ، چې هیڅ نشي کولای څو د دغه ناروغی فکر له ځانه ایسته کړي د وي تل په دې فکر کښې وي ، که څه هم معالج ډاکټران ورته څو څو ځله ډاډ ورکړي خو بیا هم د ده سر ه دا تشویش مل وي .

تر څو چې نوموړي روحي ډاکټر ته ورنه شي نه شي کولای له دې تشویش څخه خلاصیدای نشي .

ډېره مشهوره «فوبیا» « کلوستروفوبیا» او «اګورا فوبیا» ده هغه څوک چې د « کلوستروفوبیا» په ناروغي اخته دي ، داسې احساس کوي چې په تنګو او تاریکو ځایو کښې ولاړ دي او د فرار او خلاصون هیڅ لار نه لري . دا ناروغي دومره د تشویش وړ نه ده ، ځکه کیدای شي ، چې د دغو ځایو څخه د لیرې والي په واسطه دا تشویش د سړي څخه لیرې شي .

خو اد «اګورا فوبیا» ناروغان له هغو ځایو څخه چې هلته ګڼ شمیر خلک غونډ وي ، یا هغه لارې چې هلته تګ او راتګ ډېر زیات وي ، بېرېږي او حتی په دې . هڅه کښې وي چې د کور څخه بېخي د باندې ولاړ نه شي په لندن کښې تقریباً سل زره کسان په دې ناروغی اخته دي ، دا ډول خلک کله چې د کور څخه د باندې ځي او هغو

ځایو ته چې ګڼ شمیر خلک غونډ وي ، ګام کښېږدي د زړه ضربان يې مخ په زیاتیدو شي د خولې نایدو او چیږی پیښې يې پېښې کوي او احالت د دوو و شدت مومي او داسې کسان په بوه بې اساسه وحشت او تشویش سره اخته وي .

### د خجالت و شرم احساس

هغه کسان چې د «اګورا فوبیا» په ناروغي اخته دي په ګڼو ځایو کښې کله چې دا ناروغي حمله ورباندې

پاته په ۳۲ مخ کې

د ایوبـزی ژباړه:                له خارجي منابعو څخه

# په فضائی عصر کښې د کرنې انکشافات

زموږ په عصر کښې د علمي اکتشافاتو او سودا ګرې ترمنځ فاصله کمیږي، د مثال په توګه و یلای شو چې کاله تیر شول چې عکاسی تجارتي شکل غوره کړ، بازارته د تلیفون په راتللو کښې پنځوس کاله وخت ونیو، خو د نه کار د تللویزیون د پاره ۱۲ کاله او د ترانزیستور د پاره پنځه کاله په بر کښې ونیول .

دغه حالت په کرنه او باغدارۍ کښې هم په دغه شان دی، تر څو بوډی چه کرنه د ملی او بین المللی هوسا ینې مهم عامل دی موږ داسې نتیجې ته رسیږو چه ثابتوی کرونده ګر نورته شی کولای چه د یوډول محصولاتو کرنه په ځان پورې مختصه کړي مثلا صنایعو په ۱۹۶۹ کال کې په سلو کې ۵۵ بازار درلود، حال دا چې د پومبې بازار په سلو کې ۴۴ ؤ، او س بیانیاتي کوچې د د دو څخه د دی بر خې بازار نیولی دی، او صابون باب چې د حیواني او نباتي غوړ و څخه لاس ته را تله او س د کیمیاوي موادو څخه جوړیږي، حتی مصنوعی غوښې هم بازارته داغلی دی په امریکا کې ۱۵ شرکتونه جوړ شوی دي چې د اصلي خوراکې شیانو په ځیر ترکیبي موادمنځ ته راولي او د تکنالوژي متخصصین معتقد دی چې دغه د کار لومړی سر دی .

د نفتي شیانو څخه د پروټین لرونکو موادو د جوړولو د نفتو د ځینو شرکتونو په واسطه زیاتې څیړنې شوي دي چې د ځارویو په تیره بیا د انسانانو د مصرف د پاره خوراکې شیان تهیه کړي ، دغه شیان د غنې ویټا مینو او دامینه اسید د ارو څخه او په سلو کې پنځوس پروټین لري او اقتصادي جنبه ئې او س تر څیړنې لاندې ده .

دغه تحولات ثابتوی چې کروندګر باید په راتللونکی وخت کې د کرنې په معمولي طریقو سربیره خاص مهارت په کار واچوي څو چه د نوی تکنالوژۍ چې د لارې پرمخ ولاړه شی، د هغو تغیراتو په باب پیش بینی چه د ۱۹۷۰ او ۱۹۸۰ کلونو ترمنځ به په پهه کې وشي او د هغه شي سره ئې مقابله چه د تکنالوجی له پلوه به د کرنې په مصنوعی فروعاتو کښې منځ ته راشي مشکله او عملي نه ده .

که زموږ خوښه وي او که نه، امکان لري چه دغه دوړان خوړ و تهیه کول به دوام وکړي

او س یو عادي امریکائي بوا ځی په سلو کښې شپاړس اعشاریه اته د خپلو خالصو عایداتو څخه د غذا له پاره لګوي ، او په دې کې شك نشته چه تولید کوونکي دغه اندازه لوړه کړي، په آینده کښې به زیاتره خوراکې شیان د کنسرو تولید کوونکو ته وقف شي، د کرنې به برخه کښې به په سلو کلونو کښې زیاته پانګه په کار ولویږي

متخصصین به ډیرې څیړنې وکړي، او کرنه به په خاصه توګه سره به تخصصي طریقه لس څله پرمخ ولاړه شی او د دغه کار د پاره به د لویو ماشینی آلاتو، چه تخم او د کیمیاوي کودا او د کرنې د موږ د و څخه استفاده وشي، به دغه مشکله برې په دې ډول ترلاسه کیږي .

## د ماشین آلاتو قدرت :

د تراکترونو د آس د قدرت زیاتوالی به دوام وکړي د ۱۹۵۰ کال څخه تر اوسه پورې په سلو کښې ۲۲۵ زیات شوی او انتظار ایستل کیږي چه تر ۱۹۸۰ کال پورې به په سلو کښې نوره پنځه او یا زیاتوالی راشي .

د تراکتورو قدرت د کرنې په عملیاتو کښې د چټکتیا او پرمختګ سبب دی او ښائی چه په یوه ساعت کې ۱۳ کیلو- متره ته ورسیږي هغو ماشینانو ته به زیاته توجه وشي چه د داخلي سون په موادو سره به چلیږي، معمولي موټر ونه او ډیزلونه به د انرژۍ په نورو منابعو به کار ولویږي، دغه تغیرات د لویو تراکتورونو په برخه کښې دي . ☆

★ **د ټراکټورو د لاربښوونې سیستم:**

د پرمختللې تېرې پېړۍ چې الکترونیکي سیستم به د ټراکټورونو لارښوونه وکړي او د هغو سرعت به کنټرول کړي ترڅو چې مقصدي بې د کولای شي آلات او اوزار د منځه ته راولي.

د ماشینونو د کنټرول په شکله به د اتومات سیستم څخه کار واخستل شي او د غه ماشینونه به د میخانیکي عواملو د وظیفو د کنټرول له کبله وي، امکان لري چې تر ۱۹۸۰ کال پورې به اتومات ټراکټور چې چلوونکي ونه لري منځ ته راشي او بیا وروسته به د غه شکله ټلویزیون هم په کار واچول شي.

## د کروندې اوزاري:

په لوړ ادټلو انکو کلونو کې به د کروندې اوزار د میخکي کار، او د هغه مربوط د ماشین آلاتو قدرت لکه د لو کولو او کو ټلو کمپر یسورونه منځ ته راشي.

د محصولاتو اخستل، د کمپاینونو ظرفیت او قدرت به تر ۱۹۸۰ کلونو پورې پورې ډېر شي، چلوونکي به به هغه وخت کې وکولای شي په کروندو کې د کمپاین دستگاه ډېره چټکه کړي.

تر ۱۹۸۰ کال پورې به میخانیکي وسایل د میوو او سابو د تولیداتو زیاتو لو په کار کې برخه واخلي، د دغه ډول محصولاتو د پاره تر اوسه پورې دغسې وسایل په لاس کې نه شته، خو تر هغه وخت پورې به ارزانه میخانیکي اوزار بازار ته راشي.

## د کروندو پوله بندي:

د کرنې په لار کې پرمختګ به په پای کې د کروندو پوله بندي د منځه یوسي او دغه پرمختګ به د کرنې د تجهیزاتو په نهضت پای ته ورسیږي امکان لري چې دغسې یو حالت به منځ ته راشي چې میخانیکي یواځې د یوې کونو تخم شیندلو، کود په کار اچولو او د میخکي د محصول ټولولو په کار کې زیات په کار ولوېږي.

## امنیت او هوسا ینه:

انتظار ایستل کېږي چې تر ۱۹۸۰ کال پورې به د امنیت او هوسا ینې زیات وسایل حتی د تهوېې وسایل د ټراکټورونو د چلوونکو په ځای کې تعبیه شي، د فابریکې خاوندان او کروندگر به د زیاتو امني تجهیزاتو څخه زیاته خبرتیا حاصله کړي.

زموږ دوران، د تغیر او تحول دوران دی او دغه تحولات د ژوند د نعمتونو څخه د گټې اخستلو، او د هوسا ینې د وسایلو د په لاس راوړلو په لار کې به کار لوېږي.

د ۲۰ مخ پاته

## ولې پیر یږو؟.....

راوړی شرمیږي چې د چا څخه د مرستې غوښتنه وکړي پکار ده که چېري دوی کوم ته ورسیږي نو هر و مرو بېرته عادي حالت ته راگرځي.

نو دوی له ځانه سره د اعزام کوي چه د کومو ته وځي همدا رنگه که چیرې د دا ډول کسانو څخه د هغو د ناروغۍ په شکله کومه پوښتنه وشي، نو شرمیږي او د ځواب ورکولو څخه ډډه کوي، حتی معالج ډاکټر ته هم خپله ناروغي نه بیانوي.

په دې ناروغۍ باندې یوازې بېسواده خلک نه اخته کېږي بلکه ځینې لوی لوی پوهان هم دا ناروغي لري.

راځئ چه اوس د دغې ناروغۍ اصلي علت وڅېړو او د خلاصون لاره ئې ومومو.

د بده مرغه تر اوسه پورې د روحیاتو پوهانو د دغې اصلي او اساسي علت نه دی ښکاره کړی.

خو ویلای شو چه دا رنگه ناروغان کله چه بازار او یا داسې نورو گڼو ځایونو ته ولاړ شي، داسې سوچ کوي چې ټول خلک د دوی هر حرکت او کړنه، او عادي رفتار تر دقیق کنټرول لاندې نیسي، او باید دوی داسې ناوړه حرکت ونه کړي، چه نور هغه ته متوجه شي، او گوته ورته ونیسي، او د هغو د کړکې باعث وگرځي.

د داسې ناروغانو سره د دوی د روغتیا له کبله باید داسې مرسته وشي چه تل دوی ته داسې تلقین وکړي چه دا تصورات ټول له بې اساسه اندېښنې دي، او په حقیقت کښې دوی جوړ او روغ دي دوی کولای شي چه په گڼو ځایو کښې تګ او راتګ وکړي او لازمه او ضروري ده چه په دې برخه کښې د روح پېژندنې ډاکټر ته مراجعه وشي.

معالج ډاکټر د روحیاتو د علم پر اساس د (اگورافوبیا) ناروغۍ داسې معالجه کوي چې ناروغ د لږ وخت له پاره د یو بل ملگري سره گڼو ځایونو ته استوي او کله چه هغه لږ شانتې پخه شو، نو بیا هغه یوازې د باندې لېږي.

همدارنگه بله لار داده په هغه کور کښې چې په ناروغۍ اخته کسان شته باید هلته زیات میلمانه تګ او راتګ ولري تجربو دا ثابته کړې ده چې دا دوستي طریقه ډېره مؤثره او گټوره ده. (پای)

پښتو کوونکی تیمورشاه ( صالحی ):

# په افغانستان کښې د مو اصلاتو نقش

دافغانستان هیواد چې (۶۵۰۰۰۰) کیلومتره مربع مساحت لری دوه نیم واره دالمان دفدرالی جمهوریت څخه لوی او تقریباً (۱۵) ملیونه نفوس لری، د افغانستان هیواد ټوله په وچه محاط دی

یعنې د بحر ته هیڅ لاره نه لری چې په دې موقعیت سره دا د و یا د سویس هیواد ته ورته دی ځکه

د افغانستان د طبیعی موقعیت له مخې د (آسیا سویس) په نامه یادیږی افغانستان د شمال ختیځ په ساحه

کښې د مرکزی آسیا په لوړه سطح تعلق لری، د دې هیواد ختیځې او مرکزی برخې په لوړو غرو محاط شوی دی چې د هغې ډلې څخه د هندوکش سلسله چې

د شمال ختیځ څخه د جنوب او لویدیځ خواته اوږده شوی ده د (۷۰۰۰) مترو څخه زیات لوړوالی لری په داسې

حال کښې چې د لویدیځ خواته د هغه لوړوالی ورو ورو کمیږی ځکه نو ددې سلسلې د موقعیت په نسبت د افغانستان یوه زیاته برخه د تنګې دراتګ وړ نده .

په افغانستان کښې زیاتره هموارې سطحې په جنوبی او شمالی برخو کښې شته دی . ددې هیواد دوو ته هم د حمل و نقل له حیثه ګټوره نه دی

ځکه داروددو نه بوازې په هیڅ وخت او د کال په لومړی سر کښې چې د لوبو او ځیګو غرو ژاوړدی و بلیسی ډیری او به لری او بل

(۳۳مخ)

وخت چندانی او به نه لری په هیواد کښې یوازې رود چې د کښتی چلو لو وړ دی (آکسوس) یا (آمو) دی چې د افغانستان او شوروی اتحاد تر منځ په ډیره فاصله طبیعی سرحد جوړ وی.

دی رود د یوه لویه قرا نزیقی لار جوړه کړیده چې ددې لاری په واسطه د روبا او شوروی اتحاد مالونه افغانستان ته راوړل کیږی افغانستان له ډیر پخوا

څخه د یوې خوا د ترکستان او ایران تر منځ تګ لاره او د بلې خوا د هند د قاری معبر تشکیل کړی وو د هغو لوړو غرو

سلسلې چې د لو یدیځ او جنوب لویدیځ لورته غزیدلی دی د افغانستان مهمې لارې او معبرونه ئې تشکیل کړیدی .

د افغانستان د خلکو سیاسی انکشاف د مو اصلاتی انکشاف د تأثیر څخه نه شی

وتلای هو کله چې افغانستان په ۱۹۲۹ کې خپل سیاسی استقلال لاس ته راووست نو د هغه وخت له پاره ددې هیواد خلک مجبوره شول چې د خپلې خپلواکۍ او د هیواد د

آزادۍ د ساتلو د پاره د خارجی هیواد و د تخنیکی انکشاف او ارتباطاتو څخه ګټه کیدل غوره کړی کله چه په ۱۹۶۳ کال کښې د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د ابتکار او ارادې سره سم نوی او معاصر

قانون تدوین او تر اجرا لاندې و نیول شو نو په هیواد کښې د عصر د مقتضیاتو سره سم د یو نوی او دیمو کراتیک دولت اساس

کښیښودل شو تر څو چه په اجتماعی سیاسی او اقتصادی انکشاف کښې هم آهنګی تضمین شی . زموږ ګران

هیواد افغانستان په ۱۹۴۶ کال کښې د ملګرو ملتو په غړیتوب کښې شامل او د ټولو هیوادو سره ئې د بې طرفی د سیاست رعایت وکړ د شوروی اتحاد، امریکا متحده

ایالات د المان فدرالی جمهوریت او د نورو هیواد و سره ئې دوستانه روابط ټینګ کړل .

افغانستان د مخ په انکشاف

هیوادو په ډله کښې شامل او د خپلو تاریخی، سیاسی او جغرافیایی شرائطو له کبله په ۱۹ پیړۍ کې صنعتی انقلاب نفوذ ونکښی وکړ .

لومړی ګام چې دې هیواد په دې لار کښې د نورو هیواد و په سوبه واخیست د خپلواکی د بلا سی راوړلو روسته یعنې د ۱۹۱۹ کال څخه وروسته وو په افغانستان

کښې د اقتصادی او تیاوو لیری کول د دوهمی لوئی جګړې څخه وروسته منځ ته راغله . د افغانستان د پنځه کلنو پلانو په چوکاټ کښې چه د (۱۹۵۷) کال

څخه وروسته د دوستو هیوادو په مرسته تر اجرا لاندې و نیول شول .

په لومړی مرحله کښې د اقتصادی زیربناء جوړولو زراعتی او صنعتی پروژو ته جدی

توجه وشوه .

افغانستان د خپل سیاسی او جغرافیائی موقف په نظر کې نیو لو سره د مو اصلاتو په ساختمان کښې له څه وروسته په فعالیت شروع وکړه .

په دې هېواد کښې به قوله (۱۹) بېړۍ کښې د حرفوي اقتصادتو ابېدې شکل په کوچنیو پیمانو کښې په عنعنوي او هم منطقوي صورت فعالیت درلود په دغه وخت کښې د برتانوي هند او سېمې لار د ختیځ سرحد او بحري پیمانو ترمنځ یوه رابطه ټینګه شوه. له بل پلوه د روسیې د شوروي اتحاد او سپمې لار د افغانستان تر سرحد اورسېده او په دې ترتیب سره د هېواد شمالي ایالات د مرکزي آسیا د تجارتي مرکزو د جمهوریتو سره یوه مستقیمه رابطه پیدا کړه. د دې کرښو سره سم تجارت او زراعت په هېواد کښې په رونق پیدا کړ ځکه چې د یوې خوا د هېواد د صادراتي مالونو د پاره نوي مارکېټونه منځ ته راغله او د بلې خوا د اروپائي هېوادو صنعتي محصولات په زیاته پیمانه لاس ته راغله هغه نقش چې دولت لکه نور د مخ په انکشاف هېوادونه د هېواد په انکشاف او اعتلا کښې د اقتصادي سیاست له حیثه لري د اهمیت وړ دی، د خلکو عدم سرمایه ګذاري او د زیر بنا مېکو متصدیانو نشته والي د دې سبب کېږي چې دولت په اقتصادي ژوند کښې فعال سهم برخپله غاړه واخلي. په دې اساس په افغانستان کې اساساً د آزاد اقتصادي بازار د اصول او د قیمتو میکانیزم رعایت کېږي. بخپله زیر بنا او اقتصادي انکشاف یو د بله سره نږدې رابطه لري، اقتصادي زیر بنا هغه مادي، سازماني شخصي او حقوقي تأسیساتو له مجموعې څخه عبارت دي چې ویشل شوي کار د بودا سي اقتصاد په چوکاټ کښې چې د کار پر وېش باندې اتکا لري او د خلکو د استفادې وړ وګرځي.

اقتصادي زیر بنا د مولودو قواؤ استفا دې او ترکیب ته انسجام ورکوي تولید او د اقتصادي فعالیتو انسجام په ښه توګه تعینوي.

اقتصادي زیر بنا لوړه ترین اقتصادي رشد میسره وي مادي زیر بنا عبارت ده د هغو لو هغو دستګاوو او تجهیزاتو څخه چې د مواصلاتو، مخابراتو او طبعي منابعو په ... کښې د انرژۍ د تهیې په لار کې خدمت کوي مادي زیر بنا د خپل جامع تأثیراتو په خاطر د تولید د قواؤ په ایجاد کښې مخصوصاً د صنعتي کېدو په مختلفو اشکالو کښې یو مهم عامل ګڼل کېږي د مواصلاتو سیستم یوه بنیادي سرمایه ګذاري او مادي زیر بنا یو دي مربوطه ده او مختلف وظایف که اقتصادي او که غیر اقتصادي وي لکه فرهنګي سیاسي او پلان ګذاري سرته رسوي د دولت وظیفه دا ده چې هېواد ته انکشاف ورکړي او د خلکو د پاره داسي شرایط منځ ته راولي چې د هغه په استفاده سره په اقتصادي سیاسي، فرهنګي او اداري ساحو کښې فعالیت وکړای سي مواصلات او صنعتي کېدل یو پر بل باندې ژور تاثیر اچوي او یو د بله سره اړیکي لري لکه چې په پر مختللي هېوادو کښې مواصلات او اقتصاد مخنګ پر مخنګ مخ ته ځي ځکه نو په لږ انکشاف هېوادو کښې مواصلات لوړېږي د اسي شرایط منځ ته راولي چې تولید او تجارت مخ ته ولاړ سي.

سره د دې چې افغانستان یو مخ په انکشاف هېواد دی خو یوه بېړۍ د مخه عنعنوي کاروانونه مخ پر انحطاط سوه د سویز کانال پرانستل او د روسانو دا وسپنې د کرښې اوږد دیده په آسیا کښې د تجارتي کاروانو امتیازات له منځه یوړل او هند د استعمار کې موجودیت او د روسانو حاکمیت په ټوله منځه آسیا کښې د دې سبب سو چې نوموړي دوه هېوادونه په تجارت کښې یو د بله سره د لچسپي ښکاره نه کړي د کرهڼې په برخه کښې افغانستان هم کله د مخکې د مخ نور په وچه مجاط هېوادونه د وارداتي اقتصاد درلودونکي دي یعني کوچني او بالوي زراعتي برخې د بې حاصلو او کم نفوس و ځونو په واسطه یو د بله سره جلا سوي دي طبعاً دغه لیري سیمې صحیح او منظم مواصلاتو په واسطه یو د بله سره اړیکي پیدا کولای سي دغه مواصلات د هېواد په انکشاف او امکاني تحریک کښې ډېر لوی رول لري او همدا غه رنګه دغه مواصلات د اقتصادي رشد سبب کېدلای سي د مواصلاتي شبکو تکمیل په عین زمان کښې د سیاحت اساسي شرط هم ګڼل کېږي ځکه چې نن ورځ جهاني توریزم د هېواد په اقتصاد کښې نسبتاً مهم عامل ګڼل کېږي له دې جهته د مواصلاتو د خطوطو اصلاح مهمه او د افغانستان پر اعمار و باندې تأثیر اچوي د بنځه کلن پلان د طرحې او تطبیق سره سم د

دهیواد په اقتصاد کښی نسبتاً مهم عامل بلل کیږی له دی جهته دمواصلاتو دخطوطو داصلاح اهمیت دافغانستان مهم او پر اصماره و باندی تاثیر اچوی د پنځه کلن پلان دطرحی او تطبیق سره سم دافغانستان دولت تصمیم

ونیوی چی یو منظم مواصلاتی سیستم جوړ کړی او په دی ترتیب سره چی انکشافی مواصلاتی لارو ته ضرورت درلود دلومړی پنځه کلن انکشافی پلان له مخی چی په (۱۹۵٦) کال کښی منع ته راغلی کمه (اسفلټ یعنی قیر شوی) اساسی لار په هیواد کښی نه وه یوازی به

قول هیواد کښی (۲۷۰۰) کیلومتره د استفادې وړ سړ کونه چی ددې جملی څخه (۲۵۰) کیلومتره د استفادی لاندی نه نیول کیده موجود وه همدارنګه په دی وخت کی د الوتنو مخصوصی دستګاوی او عصری میدانونه په هیواد کښی نه وه ددولت اساسی هدف دمواصلاتو دانکشاف څخه په لومړی سر کښی داؤ چی د هیواد لویو ښارونو او اقتصادی مرکزونه داسلفټ سوی سړ کو په واسطه یو د بله سره ارتباط ور کړی او بر سیره پردی خوښتل ئی چی تجارتی لارو ته دګاونډی هیوادو ترسرحدو پوری پراختیا ور کړی چی دهغه په واسطه د هیواد اقتصادی همبستګی په جهانی تجارت کښی استقرار وه ومومی د دغه لوبو لارو کار چی دلومړی

پنځه کلن انکشاف پلان څخه شروع او تر (۱۹۷۲) پوری پایښت لری دافغانستان دپاره خاص اهمیت لری ددغو لویو لارو عمومی شبکه چی دافغانستان مرکزی غرونه ئی احاطه کړی دی او دپایتخت یعنی کابل سره په ختیځ او لویدیځ کښی دهرات دولایت سره په لویدیځ

کښی رابطه ټینګه وی او ددغه ارتباط په اساس مهم ښارونه او دزراعتی تولیداتو مهم مرکزونه چی په دغه مسیر کښی واقع نه وی یو د بله ددغو عمومی لارو څخه د کابل او شیرخان بندر ترمنځ قیرشوی عصری مواصلاتی لار ده چی دهیواد پایتخت دشمالی مهمو صنعتی مرکزو سره نښلوی دغه مهمه لار په شیرخان بندر او دشوروی اتحاد په سرحدو کی ختمیږی ددغی لاری په اوږدو کښی مهم صنعتی ښارونه لکه : پلخمری، کندوز او بغلان چی ددغو ښارو څخه دهیواد مهم اقتصادی مواد لکه سمنټ، پنبه او بوره لاس ته راځی موقعیت لری .

دیوه بل سړ ک په اوږدو کښی چی د پلخمری څخه ترمزار شریف پوری اوږدوالی لری دافغانستان دډبرو دسکرو دډبرلوی د (دره صوف) کان چی تولیدات ئی په

زیاته اندازه استهلا کی مر کزونه انتقالیږی شته دمواصلاتو دانکشاف او لویو لارو په منځ ته راتللو کښی دافغانستان په شمال کښی تر اوسه کوم اساسی سړ ک د بدخشان خواته نه دی جوړ شوی په دی ځای کی باید زیاته کړو چی ددغی لاری جوړول د بدخشان دولایت دمالګی

د کان دانتقال لپاره دهیواد نورو برخو ته ډیر د اهمیت وړدی .

دغه لویه او عمومی لار چی د کابل څخه شروع شوی او دهندوکش دسلسلی او دسالنګ د کوتل څخه تیریږی په (۱۹۵۸) کال کښی دشوروی اتحاد په مرسته شروع او په (۱۹٦٤) تکمیل شوه .

ددې لاری په جوړیدو کښی دهغه دقولو جنبواو دسالنګ دتونل سره دشوروی اتحاد دمرستو څخه استفاده شوی ده .

دسالنګ تونل چی (۳۳٦۰۰) متره لوړدی په (۱۹٦۳) کښی دهندوکش په غره کښی و کښل شو داتونل د ۲٦۷۰ مترو په اندازه د ګادو څخه جوړ شوی دی دسالنګ د نوی لاری په جوړیدو سره نسبت هغی پخوانی لاری یعنی شیبر ته سړ ک (۲۳۰) کیلومتره لنډ شو چی په دی حساب د کابل څخه تر شیرخان بندر پوری عمومی واټن (٤٥۰) کیلومترو ته رسیږی . (نور بیا)

(د ۱۸ مخ باته)

## عربی مثلث اتحاد

مجبوری شوی دی اسرائیل مجاصره کړی .

دعربو دا تحادبی جوړیده هغه ستر اقدام دی چی اسرائیلو پخوا هم له هغه نه خوف درلود .

دعربی نړی مطبوعاتو دمثلث اتحاد څخه چی

دعربو د نیول شویو ځایو د بیرته اخستلو دپاره دعربی هیوادونو دقواؤ د تمرکز په لیاره کی یو بل اقدام دی هر کلی کړی دی همدارنګه داردن صدر اعظم دالمغرب پاچا، دالجزایر ددولت رئیس اود ملکرو ملتو دمؤسسی سرمنشی او ثانت دعربی

فدراسیون پر جوړیدو باندی تبصری کړی دی .

دعربی فدراسیون داعلامیدو وروسته د اسرائیلو کابینی غونډه و کړه او ددغه فدراسیون جوړیده دهغه هیواد د حکومت داندیښنی سبب شوی دی (پای)

د «ویران» ژباړه:　　　　زموږ د تاریخ له ګوټو څخه:

# د غزنوی محمود تر قوماندې لاندې چې افغانان

## دوهمه پلا پر هند یرغل

> دا له د غزنوی محمود د دفتر حالاتو یو لړ څخه بیانیږی هغه چې په ۳۹۱ هجری کال وهندته دوهمه پلا ورننوتل او لوی فتح ئی په برخه سوه. د دې فتح د ګذارش یوه برخه د یوې قصې په توګه درو وړاندې کیږی.



سلطان محمود غزنوی

داسی یو کال و چه د پنجاب لوی دښت خاص زینت او ښکلا د دلوده څکه د طبیعت با فوان په دی کال دا دښت په زرغونو وښو او وحشی رنګارنګ ګلانو خودا ښائسته کړی و.

خو د دی پر ځای چی په دی روح بخښونکی دښت کی میدان د خپلو پر پروپانو سره د رازو نیاز وخت او میعاد و، هلته کی او لاس تر غاړه د ګلانو په منځ کی سره د هوسیږی یا مطر بان د پسرلی د دی بی بها سوغات او زړه خوشاله کونکی ګلانو او شنه چمن په

زړه کی خوږی نغمی وا وروی، په یو برخه کی ئی تو دی سپینی او سری خیمی د دول سوی وی توپ هیکله جنګیالی افغانان چی د جنګ په سامان او وسلو بادوه دایه میشت وه او د دوی حرکاتو څکه په ښو ورد او ستلی وه.

غزنوی سلطان محمود چی د شهرت آوازه ئی په جهان کی خپره شوی وه د دوهمی پلا دپاره ئی پر هندوستان هجوم راوړی او دا د هغه شمار و چی د (اسلام بیرغ باید د هند پر ښارو او بتخانو ودریږی).

د سلطان محمود د اردو ګاه څخه شلو د فرسنګه لیری په زرو خیمی نوری ولاړی وی چی هغه د سیکانو، پنجابیانو او د هند د مختلفو جنګی خلکو وی د دی خیمو په منځ کی

یوه مجلله او ګران بها خیمه هم ولاړه وه چی په (جیپال) (هندی مشر) ئی اړه درلوده د دی ځای په یوه پراخه ګرکی د جیپال د خیمی مخ ته دری سوه تنه لښکری پیل پیل سرداران د یوی دائری په شکل راګرځیدلی وه او د ګر په منځ کی یوه عجیبه منظره لیدل کیده چی حتی له دی دری سوو تنو افسرانو څخه هم یو لا نه و خبر چه دا به څه معامله وی؟

دلته یوه لویه دار ګوګوټه جوړه شوی وه او لرګی هم قیمتی لرګی وه لکه صندل- آبنوس- کاج او نور پر دی لرګو سر بیره یو څو کیه چی د سرو زرو وه او جواهرات پکښی کار شوی وه ایښوول شوی وه.

خلک په دی انتظار کی وه چی (جیپال) د ګرته راسی او دا مرموزه معما حل کړی. نا بیره (ډول او سرنا) ودرغول شوه او د (جیپال) د خیمی زرین او ګران بها پلو

پورته سو لوړقامتی (جیپال) چی د رزم لباس ئی اغوستی و راښکاره شو. د ده تر شا د ده ځوان زوی (اننډپال) او یو مشر چی په قدو قامت او مخ و قوله وجود ئی دواړه په تور لباس کی چی زرین ستوری پر کار سوی

وه پټ و کمیس یی هم د دغه قو کر څخه جوړ سوی و.

ګړی په ګړی د خلکو حیرت زیاتیدی هغه څه چی د حاضرینو د زیات

تشویش موجب و هغه دا د ګران بیه لرګو کوټه او د هغه پر سر څو کی وه څکه هو له په دی

پوهیدله چی یوانسان باید په دغه لرګو کی د سوځل سی خودا نه وه ورته معلومه چی هغه به څوک وی؟ دا مجلل تشریفات بیا د دی

دلیل وه چی که ر وی که ښځه د یوه لوړ خاندان مربوط به وی

کله چی جیپال، اننډپال او تور پوښه ښځه له خیمی را ووتل د څو لو

(پاتی لری)

دا گمان سو چې په اوږدو کې به دا ښځه سوځل کېږي خو دا هرڅوک فکرونه او چرتونه د دوام په حال کې وه چې جیپال خپل زوی ته وویل: انند پاله! دا ښځه تا ته درسپارم او وصیت درته کوم چې هیڅ کله ئې مخ مه گوره زما او روسته ئې بوې بتخانه ته ولیږه . چې دخپلې خوښې او رضا سره سم هلته واوسي .

دا چې ئې وویل دمخه تردې چې زوی بې بو څه ووائي ښځه ئې ترلاس ونیوله او په اوږدو گامو دلرگو د کوټې خواته ولاړه ښځه ئې د یوه لگېدلي مشعل څنگته چې خوش بویه دودئي پورته کېدې پرېښوله په خپله په ډېره چابکۍ دلرگو سر ته وخوت او

پر هغه قیمتي چوکۍ وودرېدې سره وڅرخېدې او ټوله حاضرین ئې تر نظر تېر کړه .

دا فسرانو او نورو حاضرو خلکو زړونه په در بې کښېوتل او ساه چا نه کښل یو عجیب کیفیت جوړ سو هر چا دا احساس کړه چې یوه مهیبه صحنه دا تلونکې

ده ټوله سترگې غوږونه او فکرونه د (جیپال) خواته متوجه وه .

انند پال هم د پلار د تصمیم څخه ناخبره و ده د ښځې په باره کې د پلار د وصیت په شاؤ خوا کې چرت واهه او دې خبرې چې پلار ورته وکړه ده ته یو لوی عذاب دا او روست د ښځې باریک او لوړ اندام په حجاب کې هم څه

ښکاره کېدې او انند پال په مسلسل سترگې وراته ولې او ددې سودائي خوراډېر سوه چې یو وار ئې د ښځې مخ لیدلی وای انند پال لا په دې چرتونو کې ډوب ؤ چې

پلار ئې په یوه متین او لوړ آواز په وینا پیل وکې ، خلک ټول داسې خاموشه سوه چې که دا وخت یو څوک

تازه دې ډگرته راداخل سوی وای نو تصور به ئې کړی وای چې دا خلک نه دي مجسمې دي چې یو ماهر سړي جوړې کړي او دلته سره یو ځای سوي دي .

جیپال چې یو شجاعانه په عین حال کې جنون آمیزه تصمیم نیولی ؤ ، د غه لوړ آواز ئې خلکو ته وویل: ای زړه ورو فداکارانو! چې تر سرؤ گوډ او آل ؤ اولاد تېر

سوي یاست د هندوستان له ډېرو لیرو برخو څخه د دین ، ملت او مملکت د ساتنې د پاره دلته راغلي یاست و پوهېږی چې دخاورې او هېواد د ساتنې د پاره د سر جارول د یو



باشرفه انسان لومړنۍ وظیفه ده نو پر موږ لازمه ده چې تر آخري څاڅکي وینې پورې د دې خاورې دفاع او ساتنه وکو .

نن زه یوه مشکله وظیفه لرم چې هغه د ټولو د خوا ناچېږه ده خو زه په خپله د ښاو ډېر میل غواړم هغه تر سره کړم او دا به ستاسې د پاره سر مشق وگرزي .

جیپال څو دقیقې سکوت وکړ هغه سړه خوله چې پر مخ وتندي ئې راغلي وه پاکه ئې کړه او دا ئې پسې زیاته کړه چې تاسې په ډېر حیرت او اضطراب منتظر یاست او نه پوهېږئ چې دلته اوس څوک سوځل کېږي هغه څوک چې دلته سوځل کېږي یو گناهکار شخص دئ چې د ده د گناهو په علت اولس او مملکت تر غضب

لاندې راغلی دی نو دا شخص باید د خپلو گناهو جبیره د مقدس اور په سوځلو کې د عسکري سردارانو او مشرانو معما نوره هم پسې مشکله سوه تشویش او خواښیني ئې لاډېره سوه ځکه چې جیپال د گناه او گناهکار د الفاظو په یادولو سره د حاضرینو په زړو او افکارو کې دا خبره پیدا کړه چې یو گناهکار سته او خپل ملک ؤ ملت ته ئې

خیانت کړی دی .

خو دا مشکله خبره وحلېدو ته نو کې نژدې سوه او جیپال وویل آیا ستاسې په یاد دي او ملتفت یاست چې زموږ لښکریان د سلطان محمود تر لښکریانو څو گرایه بالا او مجهز وه لیکن موږ مات ، ومغلوب سولو .

آیا په دې کې مو فکر کړیدی چې زموږ ځوانان د سلطان محمود تر ځوانانو پاته نه وه په تجهیزاتو او تعداد کې تر هغو ډېر بالا وه آیا څنگه موږ مغلوب سولو؟

جیپال بیا په خوله سو چې ده په وینا کې خلک په فکر وکې له هغه وروسته ئې وویل: د بدمرغه زه پوهېږم چې د دښمن د غلبې اصلي علت هغه گناهونه دي چې زه ئې مرتکب سوی یم .

اوس چې بیا سلطان محمود د خپلو سر بازانو سره راغلی او پر پنجاب د یرغل خیال لري لازمه ده چې زه خپل ځان دا اور په سوځلو پاک کړم څو تاسې و کولای سوای چې پر ده غالب شئ .

لښکري سردارانو او مشرانو په دا فکر هم کاوه چې (جیپال) د محمود د هغو ماتو څخه چې ده ته ئې ورکړي دي

مغموم دی او دا چې بیا هم د سلطان محمود سره د جنګ په محاذ کې مخامخ کېږي نو دې خبرې د ده حواس ورخراب کړي دي .

یا دا چې یو مرموزه نقشه ئې طرح کړېده او هغه ئې عملي کېږي . نو د حاضرینو چپتیا او حیرت نو ډېر هم پسې زیات ږي دي .

جیپال بیا په خبرو پیل وکړ چې اې زما ورورو غښتلو !

ما دا هر وخت فکر کاوه چې زه د ګناهونو مرتکب شوی یم او ممکن چې موږ تاسې په یو سخت مصیبت مبتلا شو ځکه چې د ا ګناه شخصاً په ما پورې لري که زما وجود نه وی نو دا ګناه هم د اسره نابوده کېږي زه به دې خبره کې ورکړم چې د دې ګناهو جبیره به ځنګه وکولای شم چې تاسې هم د هغه له شره څخه نجات پیدا کړئ ـ که زه د خپلو ګناهو جبیره ونه کړم نو که د سلطان محمود د لښکرو سره په جګړه کښېو نو بیا به

هم د ما ئې یو بل پیغور د اته پاته وی دا فکر زه ډېر مشغول کړی وم هغه و چې ورمه شپه په خوب کې را ته وویل شوه چې ته ځان په مقدس اور کی تطهیر کړه په دې توګه به هغه ناز له سوې بلا زموږ له هیواد څخه وګرزي .

نو دا دی چې ئن زه دا سخته وظیفه بشپړه کوم تاسې به پسله ما په یوه کامل یقین پر دښمن ورسی او فتح به مو هم په نصیب شي حتی د همیشه د پاره به ئې مغلوب کړی . ده چې دا خبرې پای ته ورسولې د لښکرې سردارانو له جملې څخه یوه چې همیشه به د جیپال سره په جنګ کښې

ځنګ پر ځنګ ولاړ وو داسې یو جرئت ئې وکی او په لوړ آواز ئې وویل چې زموږ ښاغلی مشره ! دا فکر چې تا کړی دی بیله دې چې غم او اضطراب به په خلکو کی بالا کی بله نتیجه نه لري دا بلا زموږ د ژړی ملیونه جنګی ځوانان تر بېرغانو لاندې لرو په داسې حال کښې چې سلطان محمود تر ځلویښت زره سپاهیانو زیات نه لري

زه شخصاً د جګړې مسؤلیت پر خپله غاړه اخلم او وعده کوم چې په لوړې پر غل په محمود ته ماتې ورکو که ته خپل ځان زموږ د ماتې موجب بولې نو د دې خبرې چاره خو آسانه ده ولاړ سه پټخانې ته په عبادت ځان مشغول که موږ او سلطان محمود سره پرېږده .

جیپال په یوه قهر جنه لهجه وویل چې ما ته الهام شوی دی هغه څه چې مې زړه غواړی ئن زه هغسې کوم . د دې هیواد د نجات او زما د ګناهونو د جبیرې د پاره همدا یوازنی چاره ده .

په دې کار کی مې مداخله مه کوی او خواهم مه بدوی .

دا وخت جیپال بر چو کی کښېنوست او هغه صحنه چې د حاضرینو زړونه او بدنونه ئې په لرزه راوستل شروع شوه هغه په تور لباس کی ښځې ښځې چنګ را واخیست او داسې آهنګ ئې شروع کی چې خلک ئې مجذوب کړه نو موږ ښځې د مرګ سرود وایه . (نور بیا)

لیکوال: دغورځ وال ژباړه :

## غوره کلمې

ډېره سپېڅلې کلمه : د خدای نوم دی .

ډېره پاکه کلمه : وجدان .

ډېره سخته کلمه : جګړه .

ډېره عالی کلمه : خپلواکي .

ډېره ښکلې کلمه : مینه .

ډېره جذابه کلمه : وفا .

ډېره وحشي کلمه : د بې ګناه وژل .

ډېره با ارزښته کلمه : مور .

ډېره بامعنی کلمه : پلار .

### د نړۍ لوړ ځایونه:

د مځکې ډېره لوړه څوکه د ایورسټ څوکه ده چه (۸۸۸٤) متره لوړه والی لري .

د نړۍ ډېر لوړ اور غورځونکی غر «پوپو کاتیپ» په امریکا کښې دی .

د نړۍ ډېره جګه ودانۍ د «امپایر ایسټ» ودانۍ ده چه په ۱۰۲ پوړېز ډول جوړه شوې او ۱۲۵۰ متره لوړوالی لري .

د نړۍ ډېره هسکه څوکه د اروپا د منتبلان څوکه ده چه ٤۸۰۷ متره لوړ والی لري او په امریکا کی ډېره جګه څوکه د «اکانکاګوا» ده چه ٦۹٥۳ متره هسکوالی لري د نړۍ ډېر هسک پایتخت د تبت د «لهاسا» په نامه یادېږي چه د نړۍ د بام په نامه شهرت لري .

د علي احمد مفکر په قلم :

# د کندهار یو ښوونکی

## سږ کال د سطرنج د لیګ په سیسټم کښې د قهرمان لقب یو وړ

## په کندهار کښې د سطرنج لوبغاړو ترمنځ د دیارلسو کالو راهیسې دوستانه لوبې کیږي

سطرنج یو دماغي سپورټ او داسې په زړه پورې لوبه ده چې په ټول افغانستان په تیره بیا په کندهار کښې ځوانان او سپین ږیري د رخصتي او ساتیري په وخت کښې خپل ترمنځ دغه لوبه کوي او څو تنه نور کسان د بالا بین او لیدونکو په حیث ورته تماشه وي او کله کله یوې او بلې خوا ته چالونه هم ښیي.

زموږ په محیط کښې د سطرنج لوبغاړي کله کله دومره سرګرمه وي چې حتی یو نیم شوا او ورځې لوبې ته دوام ورکوي او شوقي لوبغاړي وائي چې د دغې لوبې په وخت کښې د دوی دماغ دومره مصروف وي چې د ساز او آواز او د ساتیري د بل شي څخه هغومره خوند نه شي اخیستلای لکه د سطرنج د لوبې څخه چې ئې اخلي.

د سطرنج یوه لوبغاړي وویل چې د دغې لوبې یوه اجتماعي ښیګڼه دا ده چې څوک په لوبه لګیا وي هغه دې ته وخت نه لري چې د چا غیبت وکړي او یا پر بل باندې بهتان ووائي.

سږ کال هم په کندهار کښې د تیرو کلونو په شان د پښتونستان په رستوران کښې د دې ځای د سطرنج د ۱۳ تنو ځوانو لوبغاړو ترمنځ د لیګ په سیسټم دوستانه لوبې وشوې.



په کندهار کې د سطرنج د لوبې د شاملو کسانو یوه ډله په دغه عکس کښې د سږ کال د سطرنج د لوبې د قهرمان سره چې کپ ئې په لاس کې دی لیدل کیږي

د دغو لوبو تنظیمونکی او د صدیقي د رستوران څښتن ښاغلی محمد صدیق زموږ د یوې پوښتنې په ځواب کښې وویل چې په کندهار کښې د دیارلسو کالو راهیسې د ځوانانو ترمنځ دغه لوبې کیږي او دیارلس کاله پخوا لومړی ځل د دغه لوبې د عزت په رستوران کښې وشوې او په هغه کال ښاغلی محمد اکبر صدیق د سطرنج قهرمان وپیژندل شو. ښاغلی محمد صدیق د سږ کال په لوبو کښې حاجي محمد علي

د کندهار د سطرنج نامتو او تکړه لوبغاړی د لوبې د حکم په حیث معرفي کړ او وئې ویل چې ښاغلی محمد علي زموږ د سطرنج یو پخوانی لوبغاړی دی.

حاجي محمد علي وویل چې د څلیرویشتو کلونو راهیسې سطرنج کوي او د هیواد د خپلواکۍ په اوولسم او اتلسم تلین کښې ئې په کابل کښې د سطرنج په لوبو کښې برخه اخستې او په دغو دواړو کلونو کښې ئې په کابل کې د قهرمانۍ کپونه اخستي دي، دغه لوبې د المپیک د ریاست په مرسته وشوې.

د سطرنج د لوبو حکم د یوې پوښتنې په ځواب کښې وویل چې سږ کال د احمدشاه بابا د لیسې د نزیکټ ښوونکی ښاغلی محمد عیسی د سطرنج د لوبو د ۳۱ تنو ګډونکوونکو له ډلې څخه د ۶۲ نمرو په ګټلو سره لومړۍ درجه او د سږ کال د قهرمان په حیث وپیژندل شو.

ښاغلي محمد علي دا هم وویل چې سږ کال د سطرنج لوبې د لیګ په سیسټم وشوې حال دا چې تیر کال دغه لوبې د ناکاوټ په سیسټم وې یعنې سږ کال د لوبې شاملو کسانو د ټولو هغو لوبغاړو سره د سطرنج جلا جلا لوبې وکړې چې په دغه لوبو کښې ئې برخه اخستې وه.

(باته په ۳۰ مخ کې)

# اختراعات او نوي شیان

## نوې اوبتل



دغه نوې اوبتل چې دوه تنه پکښې سپرېږي د بېلو بېلو مقصدونو دپاره جوړه شوې دی، لکه بېړۍ داوبو پرمخ او لاندې تر اوبو حرکت کولای شي ·

هغه په سیندونو کښې د ځینو، د کښتیو د نجات، لاندې تر اوبو د ځارنې د چارو، د کښتیو د تأسیساتو، لنګرځایونو او داسې نورو بحري مقصدونو دپاره په کاریږي ·

که دمایدو لیک په یوه جنګکښ مجهز شي د سیندونو د تل څخه ملغلری ایستلای شي ·

د دغه المانې اوبتل اوږدوالی چې د سوږلی د چارو دپاره جوړه شوې دی ۹۳،۶ متره او وزن ئې ۱۴ ټنه دی ·

## نوی میکروسکوپ

په دې وختونو کښې په لندن کښې یو نوی میکروسکوپ جوړ شوی دی چې کولای شي شیان ایم ملیون واره لوی وښئي، هغه (۳۱،۲۰ ) نومېږي او د پولادان د شیانو جوړولو شرکت هغه طرح او منځ ته راایستلی دی ·

دغه میکروسکوپ د طب او د روغتیا د چارو دپاره ډېر مناسب دی او همدا اوس د لندن د روغتیا پوهنځي له هغه څخه استفاده کوي ·

د پوهانو په عقیده دغه میکروسکوپ د صنعت په بېلو بېلو څانګو کښې په تېره بیا په دواو خوراکي شیانو، فلاحت او فولاد جوړولو په چارو کښې به کاریږي·

دا څول جوړ شوی دی چې په آسانی سره ئې برزی خلاصیدلای شي او الکترونیکی میکروسکوپی اصول او د هغه د کار څخه خبر تیا حاصلیږي ·

## د زنګ ضد رنګ

د المان کیمیا پوهانو په دې وختونو کښې یو داسې رنګ جوړ کړی دی چې د هغه له کبله کوم فلز او یا بل شي چې دغه رنګ پرموښلی وی زنګ نه کوي ·

د دغه رنګ خاصیت دادی چې لنده بل تروی او به، د هوا خرابوالی، غوړي، نفت أسید او د هیوا ډېره سخته تود وخه پر هغه باندې اغیزه نه کوي ·

د دغه نوي رنګ څخه کښتی وانان په استفاده کولای شي او د رنګو لو په وخت کښې د بستو پرسو نواوزیږ و چارو کانو څخه کار اخستل کیږي او په دغه رنګ دوه واره پوښي رنګیږي ·

(د ۲۹ مخ پاته)

### د کندهار پوهنوونکي سېږ کال ...

د کندهار د سطرنج نامتو لوبغاړی د یوې بلې پوهنځي په ځواب کښې وویل چې زموږ په او سنیو لوبو کښې دارو پانې لوبې څېنې چالونه هم شامل شوي دي او هغه دا چې د سطرنج د پیاده دانه لومړی ځل د مبارزې په میدان کښې دوې خانې پرمختګ کولای شي، او هم د هري خانې څخه د پیاده چې مثلا فیل، رخ، وزیر یا آس د خوځیدو په دغه ځلو د و کښې پوهر شي څخنی جوړېدای شي·

د سږ کال د سطرنج د لوبو په پای کښې چې د حمل په ۲۸ نیټه پای ته ورسیدې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د لوی مدیر ښاغلی غلام محي الدین ابوبي په واسطه د قهرماني کپ ښاغلی محمد عیسی پوهنوونکي ته ددغه بریالیتوب ته د مبارکۍ ویلو په ترڅ کښې ورکړه شو